# د ښوونکي کتاب

# د مدني زده کړې د تدریس لارښود

# نهم ټولگی

**د پوهنې وزارت**

د تعلیمي نصاب د پراختیا او د
ښوونکو د روزنې معینیت
د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي
کتابونو د تألیف لوی ریاست




د چاپ کال :۱۳۹۴ هـ . ش.



**د پوهنې وزارت**
د تعلیمي نصاب د پراختیا او د
ښوونکو د روزنې معینیت
د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي
کتابونو د تالیف لوی ریاست

## د ښوونکي کتاب

# د مدني زده‌کړې د تدریس لارښود

## نهم ټولګی

د چاپ کال: ۱۳۹٤ هـ.ش

**ليکوالان:**

- کاظميه محقق
- پوهنيار محمد فاروق عمر خيل

**علمي او مسلکي اډيټ:**

- محمد عزيز بختياري
- سرمؤلف محمد افضل حضرتي د تعليمي نصاب د پراختيا د لوی رياست علمي غړی.

**د ژبې اډيټ:**

- محمد زرين انځور

**ديني، سياسي او کلتوري کميټه:**

- حبيب الله راحل د تعليمي نصاب د پراختيا او درسي کتابونو د تاليف په رياست کې د پوهنې وزارت سلاکار.
- مولوي قيام الدين کشاف
- محمد آصف کوچي

**د څارنې کميټه:**

- دکتور اسدالله محقق د تعليمي نصاب د پراختيا او د ښوونکو د روزنې معين
- دکتور شير علي ظريفي د تعليمي نصاب د پراختيا د پروژې مسؤول
- سرمؤلف عبدالظاهر گلستاني د تعليمي نصاب د پراختيا او درسي کتابونو د تاليف لوی رئيس.

**طرح او ډيزاين:**

- رحمت الله غفاري



## ملي سرود

دا وطن افغانستان دی — دا عزت د هر افغان دی

کور د سولې کور د تورې — هر بچي يې قهرمان دی

دا وطن د ټولو کور دی — د بلوڅو د ازبکو

د پښتون او هزاره وو — د ترکمنو د تاجکو

ورسره عرب، گوجر دي — پامېريان، نورستانيان

براهوي دي، قزلباش دي — هم ايماق، هم پشه يان

دا هيواد به تل ځليږي — لکه لمر پر شنه اسمان

په سينه کې د اسيا به — لکه زړه وي جاويدان

نوم د حق مودی رهبر — وايو الله اکبر وايو الله اکبر

**بسم الله الرحمن الرحیم**

## د پوهنې د وزیر پیغام

## ګرانو استادانو او ښوونکو،

ښوونه او روزنه د هر هېواد د پراختیا او پرمختګ بنسټ جوړوي. تعلیمي نصاب د ښوونې او روزنې مهم توکی دی چې د علمي پرمختګ او ټولنې د اړتیاوو له مخې چمتوکیږي. څرګنده ده چې علمي پرمختګ او ټولنیزې اړتیاوې تل د بدلون په حال کې وي. له دې امله لازمه ده چې تعلیمي نصاب هم د وخت له غوښتنوسره سم علمي او رغنده پراختیا ومومي. البته نه ښايي چې تعلیمي نصاب د سیاسي بدلونونو او د اشخاصو د نظریو او هیلو تابع شي.

د ښوونکی د لارښود دا کتاب چې نن ستاسو په لاس کې دی، پر همدې بنسټ چمتو او ترتیب شوی دی. د تدریس د نویو میتودنو له مخې فعالیتونه او معلوماتي مواد په کې ورزیات شوي دي چې په ډاډ سره به د زده‌کړې په بهیر کې د زده‌کوونکو د فعال ساتلو لپاره ګټور او اغېزمن وي.

هیله من یم د دې کتاب منځپانګه، چې د فعالې زده‌کړې د میتودونو د کارولو له لارې تالیف او چمتو شوې، ستاسو درنو استادانو د ګټې وړ وګرځي. له فرصت څخه په استفادې د زده‌کوونکو له میندو او پلرونو څخه غوښتنه کیږي د خپلو لوڼو او زامنو په باکیفیته ښوونه او روزنه کې پرله پسې مرسته وکړي چې په دې توګه د پوهنې د نظام موخې او هیلې ترسره شي او ځوان نسل او هېواد ته ښې پایلې او برياوې ور په برخه کړي.

زموږ ګران استادان او ښوونکي د تعلیمي نصاب په رغنده پلي کولو کې ستره دنده او درونده مسؤولیت لري.

د پوهنې وزارت تل زیار کاږي چې د پوهنې تعلیمي نصاب د اسلام د سپېڅلي دین له بنسټونو او ارزښتونو، د ټولنې د څرګندو اړتیاوو، ملي ګټو او وطنپالنې له روحیې او د ساینس او تکنالوژۍ له نوو علمي معیارونو سره سم پراختیا ومومي.

ددې ستري ملي موخې د تر لاسه کولو لپاره د هېواد له ټولو علمي شخصیتونو، د ښوونې او روزنې له پوهانو او د زده‌کوونکو له میندو او پلرونو څخه هیله لرم چې د خپلو نظریو او رغنده ګټورو وړاندیزونو له لار ې زموږ له مؤلفانو سره د درسي او د ښوونکي د لارښود د کتابونو په لا ښه تالیف کې مرسته وکړي.

له ټولو هغو پوهانو څخه، چې ددې کتاب په چمتو کولو او ترتیب کې یې برخه اخیستې او همدارنګه له ملي او نړیوالو درنو موسسو او نورو ملګرو هېوادونو څخه، چې د نوي تعلیمي نصاب په چمتو کولو او تدوین او د درسي او د ښوونکي د لارښود کتابونو په چاپ او وېش کې یې مادي یا معنوي مرسته کړې ده، مننه او درناوی کوم او د لا نورو مرستو هیله یې لرم.

ومن الله التوفیق

فاروق وردک

د افغانستان د اسلامي جمهوریت د پوهنې وزیر

## لړلیک


**عنوان**........ **مخ**

سریزه........ **۱**

څنگه له دې لارښود نه گټه واخلو؟........ **۲**

د تدریس میتود ته پاملرنه:........ **۳**

لومړی څپرکی:........ **۴**

د ښوونې او روزنې اهمیت او د ښوونکو دنده........ **۴**

په افغانستان کې د ښوونې او روزنې عمومي موخې:........ **۵**

فرهنگي او هنري موخې:........ **۶**

د منځنۍ دورې (۷-۹) ټولگي عمومي موخې........ **۷**

د مدني تعلیماتو د ښوونې اهمیت........ **۸**

د ښوونې لیدلوری(ستراتیژي):........ **۹**

د مفاهیمو شبکې:........ **۱۰**

د مستقیم تدریس لید لوری:........ **۱۱**

توضیحي لاره:........ **۱۲**

د پوښتنو او ځوابونو طریقه:........ **۱۳**

د کتنې (مشاهدې) طریقه:........ **۱۴**

د مدني تعليماتو په لوست کې د زده‌کوونکو د برخې اخيستنې د کچې چک ليست........................................ ۱۵

د مدني تعليماتو  د درسي کړنلارې د عملي کولو وسايل........................................................................ ۱۶

دو يم څپرکی د مدني تعليماتود لوست د تدريس لارښود:................................................................... ۱۷

دولت او دهغه دندې.............................................................................................................. ۱۸

د افغانستان له اساسي قانون سره آشنا شو؛........................................................................................ ۲۳

خپل سياسي نظام او دولت لاښه وپېژنو. ......................................................................................... ۲۶

ولسواکي (د موکراسي) څه شی ده؟ .............................................................................................. ۳۰

خلک څنګه کولای شي د دولت په اداره کې ګډون وکړي؟..................................................................... ۳۵

ولسواکي (دموکراسي) په افغانستان کې............................................................................................ ۳۹

ملګري ملتونه، د جوړيدو لامل يې او د هغه اصلي ارکان. ...................................................................... ۴۳

د ملګروملتوفرعي ارکان او تخصصي سازمانونه؛................................................................................. ۴۹

د ملګروملتو کارنامې. ............................................................................................................. ۵۳

د بشر حقوق........................................................................................................................ ۵۶

په افغانستان کې د بشرد حقوقو شاليد او وضعيت. .............................................................................. ۶۳

# سریزه

د ښوونکي لارښود کتاب، هغه کتاب دی چې ښوونکي ته په ټولګي کې د لوست د پلان د غوره تطبیق لارښوونه کوي. همدارنګه د ښوونکي لارښود کتاب ښاغلي ښوونکي د ښوونې او روزنې له لویو موخو، د زده‌کړې د دورې د موخو، درسي پلان او د هر لوست د تدریس له طریقو سره آشنا کوي.

دا لارښود دوه څپرکي لري. لومړی څپرکی عمومیات او د درسي پلان پېژندنه او دویم څپرکی د درسي مضمونو تدریس یا د مختلفو لوستونو تدریس دی. لومړی څپرکی دوه برخې لري:

لومړۍ برخه یې سریزه او دویمه برخه یې له درسي پلان سره آشنایي ده. دسریزې په برخه کې ښاغلي ښوونکي د ښوونې او روزنې په هدفونو او د ښوونکو له دندو سره آشنا کېږي او زده‌کوي چې زموږ د هېواد، ګران افغانستان د ښوونې او روزنې د نظام موخې د عقیدوي او اخلاقي، علمي او ښوونیزو، فرهنګي او هنري، مدني، ټولنیزو او اقتصادي مختلفو برخو کې کوم هدفونه تعقیبوي. د دې موخو د څېړنې لپاره ډول ډول درسي موضوعات چمتو شوي دي. ښوونکي په مختلفو ټولګیو کې باید هڅه وکړي چې د محتوا د ارائه کولو او د تدریس له اغیزمنو تګلاروڅخه په ګټه اخیستلو سره د دې موخو د څېړنې (تحقیق) لاره هواره کړي.

ښاغلي ښوونکي د درسي موضوعاتو په ارزښت، د هر لوست د زده‌کړې عمومي هدفونه د پلان محتوا (د زده‌کړې د مضامینو)، په مختلفو ټولګیو کې د زده‌کړې د موضوعاتو د دوامدارو اړیکو طریقه، د تدریس میتود او د زده‌کوونکو د وړتیاوو د ارزونې له طریقې او درسي پلانونو د پلي کولو له لوازمو سره آشنا کېږي.

د یادونې وړ ده کومې تدریسي تګلارې چې د لارښود په هر کتاب کې ښودل شوي دي، د همغه لوست له موضوع سره تړاو لري، د بېلګې په توګه: هغه تدریسي تګلارې چې په مدني تعلیماتو کې په ګوته شوي دي، کیدای شي نورو مضامینو ته وړ نه وي. خو د دې تګلارو ګډه موخه د ښوونکي تر لارښوونې لاندې د زده‌کړې په بهیر کې د زده‌کوونکو فعال ساتل دي.

د دې لارښود دویم څپرکی د کلنیز پلان، د هر لوست د تدریس طریقه، د روزنې پلان او هغه منابع او اخځلیکونه چې د ښوونکي د لارښود د تالیف لپاره ترې ګټه اخیستل شوې ده، ځانګړي شوي دي. د دې لارښود لیکوونکي په دې باور دي چې کیدای شي ښوونکي کله ناکله د پوره وخت د نه لرلو له امله د ورځني پلان د جوړولو فرصت ونه لري. یا هم هر یو د درسي موخو په هکله ځانګړی استنباط ولري چې په پایله کې یې د درس ورکولو طریقه سره توپیر وکړي. د ښوونکو په کارونو کې د زیاتو آسانتیاو د راوستلو لپاره درسي پلان داسې لیکل شوي دي چې د درس ورکولو او د پلان په پلي کولو کې د ښوونکي اړتیاوې په ښه توګه پوره کوي.

د یادونې وړ ده چې یاده شوې تدریسي تګلاره د ښوونکي د هغو تګلارو مخه نه نیسي چې د کلونو په بهیر کې یې کارولې او ګټوره واقع شوې ده. بې له شکه د تدریس تر ټولوښه تګلاره هغه تګلاره ده چې په هغې کې زده‌کړه تر

سره شي او تاسې درانه ښوونکي د زده‌کوونکو په څېروکې د رضایت احساس وکړئ. د ورځني پلان بله برخه د لوستونو د متن ځوابونو او د لوست وروستیو پوښتنوته ځانګړې شوې ده. د ښوونکو د پوهې د پراختیا لپاره د هر درسي پلان په پای کې د هغوی لپاره اضافي معلومات راوړل شوي دي. بې له شکه دا لارښود له نیمګړتیاوخالي نه دی. ښاغلي ښوونکي د تعلیمي نصاب مرکز ته د خپلو نظریاتو په را استولو سره کولای شي د دې لارښود په بډاینه کې مرسته وکړي.

### څنګه له دې لارښود نه ګټه واخلو؟

د مخه وویل شول دا لارښود له محترمو ښوونکو سره مرسته کوي چې د لوست کتاب زده‌کوونکو ته په ښه توګه تدریس کړي. د دې لپاره چې له دې کتاب نه په ښه توګه ګټه واخیستل شي، باید لاندیني پړاوو نه په ځیر سره سرته ورسول شي:

**د لومړي څېرکي مطالعه:**

تر ټولو لومړی باید ښاغلي ښوونکي د لارښود د کتاب لومړی څپرکی په ځیر سره مطالعه کړي چې د دورې له موخو، د مضمون له موخو، تګلارې او د تدریس له ستراتیژۍ، د ارزونې تګلارې او د لومړي څپرکي له ټولو مطلبونو سره په ښه توګه آشنا شي.

له لارښود سره سم د دې تګلارې د ښه عملي کولو لپاره په کار ده چې ښاغلي ښوونکي د لومړي څپرکي مطالب په ښه توګه درک کړي.

**درسي ساعت ته پاملرنه:**

د کتاب د لوستونو سرلیکونه په دې معنا نه دي چې په یو درسي ساعت کې دي تدریس شي. تاسې ښاغلي ښوونکي مه اندېښمن کېږئ چې څنګه یو درسي سر لیک په دوو یا دریو برخو وویشئ ځکه دا کار مؤلفانو د معلم د لارښود په کتاب کې سرته رسولی دی. تاسې یوازې دې ته پاملرنه وکړئ چې یو لوست په څو برخو ویشل شوی دی. دا چې یو لوست په څو ساعتونو کې تدریس کېږي، د لارښود د کتاب د هر درسي سرلیک په سر کې لیکل شوی دی. د لارښود په متن کې هم لیکل شوي دي چې لوست په څو ساعتونو کې تدریس کېږي. پردې برسیره د لارښود کتاب په روښانه توګه تاسې ته څرګندوي چې د لوست لومړی برخه تر کومه ځایه ده.

**لويو او کوچنيو موخوته پاملرنه:**

د هر لوست په سر کې د لوست لویې او کوچنۍ موخې بیان شوي دي. د لوست موخې له ښوونکو سره مرسته کوي چې د لوست د تشریح په ترڅ کې کومو مطلبونو ته ډېره پاملرنه وکړي او له زده‌کوونکو څخه کومې هیلې ولري. نو له ښاغلو ښوونکو نه هیله کېږي چې په پوره ځیر سره د لوست موخې ولولي او د لوست د تدریس او ارزونې په بهیر کې له هغو نه د خپل کار د لارښود په توګه ګټه واخلي.

**د تدریس میتود ته پاملرنه:**

د هر لوست د تدریس میتود د هغه لوست د محتوا له مخې ټاکل شوی دی. د یوه لوست د تدریس لپاره کله یو میتود او کله بیا دوه یا څو میتودونه وړاندیز شوي دي. دا چې د تدریس میتود د لارښود په لومړي څپرکي کې توضیح شوی دی، نو په دویم څپرکي کې یوازې د میتودونو نومونه اخیستل شوي دي. له دې کبله ښاغلي ښوونکي باید په لومړي څپرکي کې میتودونه په ځیر سره مطالعه کړي.

د یادولو وړ ده چې د نویو میتودونو کارول په لومړي سر کې کیدای شي یو څه ستونزمن وي. نو هیله ده دا احساس تاسې د هغو له پرله پسې او درسي ګټې اخیستلو نه بې برخې نه کړي، ځکه له دې میتودونو نه ګټه اخیستل د دې لامل ګرځي چې زده‌کوونکي مو لوستونه په ښه توګه زده‌کړي.

**د زده‌کړې وسایل:**

د هر لوست ښه تدریس ځانګړو وسایلو او امکاناتو ته اړتیا لري. د لارښود په کتاب کې له ځینو مهمو وسایلو نوم اخیستل شوی دی. ښاغلي ښوونکي دې هڅه وکړي د امکان تر حده د خپل مضمون د اړتیاوړ وسایل د ښوونځي د مسؤولینو په مرسته برابر کړي.

**د ارزونې طریقو ته پاملرنه:**

د هر لوست د ارزونې لپاره ځانګړې طریقې وړاندیز شوي دي. له دې طریقو نه په ګټه اخیستلو سره کولای شئ د خپلو زده‌کوونکو د زده‌کړې کچه په ښه توګه و ارزوئ.

**د تدریس لارې چارې:**

د لارښود د کتاب زیاته برخه د تدریس تګلاره جوړوي. هغه کارونه چې ښاغلي ښوونکي یې باید د لوست په هره برخه کې سرته ورسوي، په ښه توګه تشریح شوي دي. د هر ساعت لپاره ځانګړی شوی وخت هم روښانه شوی دی .د هرې برخې وخت ته پاملرنه او د هغې سم په پام کې نیول د دې لامل ګرځي چې د هرې برخې د لوست تدریس په ښه توګه سرته ورسیږي.

**د پوښتنو ځوابونه او فعالیتونه:**

د ښاغلو ښوونکو د کار د آسانتیا لپاره د ټولو پوښتنو او فعالیتونو ځوابونه د لارښود په کتاب کې چمتو شوي دي.

دلوی خدای(ج) څخه غوښتنه کوو چې د ګران هیواد د بچیانو په سالمه او رغنده ښوونه او روزنه کې درنو ښوونکو ته زیات بریالیتوبونه ور په برخه کړي.

## لومړی څپرکی:

### د ښوونې او روزنې اهمیت او د ښوونکو دنده

پوهان په خپل وار سره ښوونه او روزنه په جلا جلا توګه تعریفوي. یو شمېر پوهان ښوونه او روزنه د پخوانیو فرهنګي میراثونو انتقال، ارزونه او پراختیا بولي. ځینې بیا ښوونه او روزنه په زده‌کوونکو کې د وروستیو صفتونو او ټاکلو ورتیاوو رامنځته کېدل بولي. یو شمېر ښوونه او روزنه په شخص کې د پټو استعدادونو څرګندول بولي. د ښوونې او روزنې یو شمېر مربیان ښوونه او روزنه په یوې ځانګړې ټولنه کې د ژوند کولو لپاره د یوه شخص اماده کول او د هغې ټولنې د ادبیاتو، دودونو، عقیدو او ځانګړو فکرونو سره د هغه آشنا کول ګڼي. نن ورځ د ښوونې او روزنې د اهمیت په هکله د لویو پوهانو له خوا خورا ګټورې نظریې څرګندې شوې دي چې په دې سریزه کې د هغوی څرګندول ځانګړی اهمیت لري. ځینې مربیان ښوونه او روزنه په یوه شخص کې د بدني پراختیاوو د بیلابیلو اړخونو لکه: جسماني، عقلي، ټولنیزو، عملي، معنوي، هنري، اخلاقي او نورو برخو کې لارښوونه بولي. جان دیوي ښوونه او روزنه په تجربو کې له سره کتنه او په داسې توګه د تجربو پلي کول بولي چې په شخص کې بې د لاډېرې ودې زمینه برابره کړې ده.

پورتني ټول تعریفونه له ځینو اړخونو سم دي، مګر په ځانګړې توګه بسنه نه کوي. د ښوونې او روزنې مربیان له زده‌کوونکو څخه ډېرې هیلې لري. هغوی له زده‌کوونکو څخه هیله لري چې د پوهنې او هنر د زده‌کړې ترڅنګ د هېواد له فرهنګ، ادبیاتو او دودونو سره آشنا شي او د دې ترڅنګ له ټولنې سره د سمون او په بریالیتوب سره ټولنې ته د ننوتلو لپاره ځانګړي خویونه، لیداو ورتیاوې تر لاسه کړي. په پایله کې وکړای شي چې د استعدادونو د غوړېدو لپاره خپله ورتیا څرګنده او د معاش د ترلاسه کولو او د خپلې ټولنې د اقتصادي اړتیاوو د بشپړولو لپاره علمي او مسلکي ورتیا تر لاسه کړي له بله پلوه هیله ده د زده‌کوونکو بدني پراختیاوې چې د ټولنپوهانو، اروا پوهانو، ژوند پیژندونکو، فیلسوفانو او اخلاق پوهانو له خوا په نښه شوي دي، د ښوونې او روزنې د لاسته راوړنې له برکته لا وده او پراختیا ومومي.

د اسلام د سپیڅلي دین له نظره ښوونې او روزنې څخه مقصد د یوه کامل انسان روزنه ده او کامل انسان هغه څوک دی چې د هغه ټول مادي او معنوی اړخونه د هغه د قدرت په اندازه وده او بدلون ومومي. د ښوونکو ترټولو ستره دنده داده چې په انسانانو کې مادي او معنوی اړخونو ته وده ورکړي ځکه چې درسي بیلابیلې موضوع ګانې هره یوه د انسانانو د وجود د بېلابېلو اړخونو د څېړنې او روزنې په لټه کې دي. له ښوونې او روزنې څخه مقصد د بېلابېلو حقیقتونو او واقیعتونو څخه د زده‌کوونکي د ذهن ډکول نه دي. په لازمي توګه ښه زده‌کوونکي هغه څوک نه دی چې زیات معلومات یې ترلاسه کړي دي، بلکې ښه زده‌کوونکي هغه څوک دي چې بدنی اړخونو یې په ټولو برخو کې وده کړې وي او داېې زده کړي وي چې په څه ډول زده کړه وکړي. دا ډول شخص په ټول عمر کې د زده‌کړې په لټه کې وي. د ښوونې او روزنې بهیر دا نه دی چې یوازې د ځانګړو زده‌کوونکو روزنې ته پاملرنه وشي او

د نورو زده‌کوونکو په برخه کې بې پروايي وشي. د سمې ښوونې او روزنې د سيستم موخه د ټولو استعدادونو روزنې ته پاملرنه ده. د روزنې په رغندو بنسټونو د سمې ښوونې او روزنې څخه مطلب د ښوونې او روزنې د ټولو موخو ځېرنو ته پاملرنه کول دي. له بله پلوه پوه او هوښيار ښوونکی د زده‌کړې په ټوله دوره کې د ښوونې او روزنې ټولو موخو د عملي کولو لپاره د بېلابېلو کړنو له لارې يوې ټاکلې کړنلارې ته پام کوي.

زده‌کوونکي د تنکۍ ځوانۍ په دوره کې ټاکلې ځانګړتياوې لري.په دې دوره کې زده‌کوونکي له بدني پلوه د بدلونونو يو نوي پړاوته ورننوزي. په دې دوره کې د زده‌کوونکو او همزولو متقابل اړيکې ځانته يوه ځانګړې بڼه نيسي. د ټولنيزو کارونو د سرته رسولو او د خلکو او قومونو د ادبياتو او دودونو د پېژندلو لپاره د زده‌کوونکو چمتووالی زياتره د ورکتوب له دورې څخه وي. په دې دوره کې تنکي ځوانان له عاطفي پلوه د ښو کارونو په سرته رسولو کې له نورو سره له مرستې خوند اخلي. هغوی ښه بولي چې خپلې زياتره اړوند چارې په مستقله توګه په خپله سمبال کړي. هغوی په دې دوره کې د طبيعت د رازونو د درک او زده‌کړې لپاره ځانګړې علاقه څرګندوي. په تنکيو ځوانانو کې هنري او د ښکلا پېژندلو شوق د ورکتوب له دورې څخه موجود وي. تنکي ځوانان خوښوي چې خپل ځانونه په بېلابېلو شکلونو کې وښيي. هغوی د زده‌کړې لپاره بېلابېلې اسانتياوې برابروي. کله نا کله د زده‌کوونکو ځينې کارونه د ښوونکي لپاره په زړه پورې نه وي خو دا اسانتياوې د روزنې له پلوه ځانګړی اهميت لري. يو پوه او هوښيار ښوونکی پاملرنه کوي چې له دغو اسانتياوو څخه د زده‌کوونکو د بدني اړخونو د بېلابېلو برخو لکه: علمي، ټولنيزو، اخلاقي، عاطفي، ديني، بدني، عقلي او نورو په وده کې ګټه واخلي.

**په افغانستان کې د ښوونې او روزنې عمومي موخې**:

په افغانستان کې د ښوونې او روزنې عمومي موخې، افغاني ټولنې ته په پام او د علم او پوهې د هر اړخيزې پراختيا، د خلکو زده‌کړې او روزنې لپاره اړينې ګڼل کيږي. د ښوونې او روزنې موخې په لاندې ډول دي:

**الف ـ عقيدوي او اخلاقي موخې**:

ـ د اسلام د مقدس دين پر بنسټونو د ايمان اوباور پياوړې کول.

ـ د الله (ج) پېژندنې په منظور د ځان پېژندنې د روحيې رامنځته کول.

ـ پر نفس او اخلاقي ارزښتونو باندې د روحيې پياوړې کول.

ـ د نظم او دسپلين د روحيې را منځته کول او د قانوني ارزښتونو رعايتول.

ـ د ښوونيزو، روزنيزو او ټولنيزو ارزښتونو په هکله د مسؤوليت د احساس د روحيې پياوړې کول.

**ب ـ علمي او ښوونيزې موخې**:

د زده‌کړې د وړتياوو ترلاسه کول او پياوړې کول: لکه اوريدل، خبرې کول، لوستل، ليکل او په رسمي او بهرنيو ژبو کې د عددونو او ليک کارول.

- په علمي، کلتوري او مهارتي برخو کې د ژور فکر کولو، مطالعې، څېړنو او نوښت د وړتيا غښتلې کول.

ـ د اړتیا وړ فردي او ټولنیزو وړتیاوو ترلاسه کول او د پوهنو او معاصرې ټکنالوژۍ د فنونو زده‌کول.

ـ د ځاني او ټولنیزو لانجو او ستونزو د حل لپاره د اړوندو وړتیاوو ترلاسه کول.

## فرهنګي او هنري موخې

د فرهنګ او هنر پېژندنه لاسي صنایع، د ستنې ګنډل، خامکدوزي، اوبدل، مهندسي، انځورګري، خطاطي، رسامي، د کور تزئینول او د نړۍ سالم هنرونه او همدارنګه د هنري او ښیاست پېژندنې د ذوق او استعدادونو پالنه او لاربښوونه.

ـ د افغانستان او نړۍ له ملي او اسلامي تاریخ، کلتور او تمدن څخه خبرتیا.

ـ د افغاني ټولنې د ارزښتونو ساتنه او د کلتور او غوره ادابو او دودونو وده.

- د تمرین او د ګوښې او ډله ییزو فعالیتونو په ذریعه د هنري وړتیاوو وده.

## مدني او ټولینزې موخې

ـ د ملي نوامیسو د ساتنې د روحیې پیاوړي کول.

- د برابرو حقونو او اسلامي اخلاقو پر بنسټ د کورنیو اړیکو پیاوړي کول.

ـ د وروړګلوۍ، همکارۍ، سولې، ټولنیز عدالت، ملي او بین المللي یووالي، پیوستون د روحیې پیاوړي کول.

ـ د خیر غوښتنې او د لوړو اخلاقي فضایلو د روحیې پیاوړتیا، له جګړې او ناامنۍ څخه کرکه، او د نشه يي توکو سره مبارزه.

ـ د قانون په وړاندې د احترام د روحیې پیاوړتیا، د قوم، جنس، اقتصادي او ټولنیز موقف، سیاسي تړاو او نورو پرته د ټولو خلکو له قانوني حقونو څخه ملاتړ.

ـ په دیني، فرهنګي، ټولنیزو او اقتصادي کړنو کې د ګډون د روحیې پراختیا.

ـ د زغم او پوهاوي د فرهنګ د روحیې رامنځته کول.

ـ د نړیوالې ټولنې له علمي او تخنیکي تجربو او بریاوو څخه د ګټې اخستنې د روحیې پیاوړي کول.

ـ انساني کرامت او بشري حقونو ته د درناوي د روحیې پیاوړتیا.

ـ د ښځو انساني مقام ته د درناوي د روحیې وده او پراختیا او د هغو له حقونو څخه ملاتړ.

ـ د لویانو، ګاونډیانو او هېوادوالو د حقونو او د مدني ټولنې د موازینو د رعایتولو د روحیې پیاوړتیا.

## اقتصادي موخې

ـ د ټولنې د پراختیایي او اقتصادي اړتیاوو او له کورني اقتصاد سره د هغو د اړیکو درک کول.

ـ د کار د اهمیت او ارزښت معلومول او په ګټورو کسبونو کې د ګډون د روحیې پیاوړتیا.

ـ د سپما او قناعت د روحیې رامنځته کول، د تجمل پرستۍ او له زیاتي لګښتونو څخه پرهېز کول.

ـ د هېواد د اقتصادي زیرمو او د هغو له راویستلو نه د ګټې اخیستنې د لازمو لارو چارو حل او پېژندنه د ملي شتمنیو او طبیعي زیرمو د ساتنې د روحیې روزنه.

**د منځنۍ دورې (۹-۷) ټولګي عمومي موخې**

هغه زده‌کوونکي چې لومړنۍ دوره په بریالیتوب سرته ورسوي، د خپلې خوښې پر بنسټ په منځنۍ ښوونيزه او روزنيزه دوره کې شامليږي.

ددې دورې عمومي موخې د زده‌کوونکو له استعداد او خوښې او د هيواد له اړتياوو او امکاناتو سره سم د ژوندانه د بېلابېلو لورو ټاکنه ده. ددې دورې موخې په لاندې توګه په پام کې نيول شوي دي:

- د لومړنۍ دورې د لاس ته راوړنو پياوړتيا او د راتلونکې دورې لپاره چمتوالی.
- د ديني او اخلاقي معلوماتو پراختيا.
- د الله (ج) سره د ډېرې پيژندګلوۍ په خاطر د ځان پيژندنې د روحيې پراختيا.
- په بيلابيلو درسي څانګو کې د زده‌کوونکو د استعدادونو په ګوته کول.
- د چاپيريال ساتنې، طبيعي قوانينو، علومو او انساني پرمختللو تجربو په هکله د شاګردانو د معلوماتو او څيرکی پراختيا.
- په هېواد کې د رسمي ژبو متوازنه وده، د مورنۍ او بهرنۍ ژبو پياوړتيا او په تحريري او تقريري توګه موخو ته د رسيدو لپاره د زده‌کوونکو د علمي سويې لوړول.
- د ورورۍ، مرستې، سولې، ملي يووالي، د روحيې وده.
- له ناروا جګړو او تروريزم څخه کرکه، د نشه يي توکو په مقابل کې مبارزه.
- د تبعيض او تعصب پرځای سالمو او روا سياليو ته د زده‌کوونکو د هڅونې د روحيې پراختيا.
- د زده‌کوونکو له خوښې او استعداد سره سم د کار او مسلک د ټاکلو د پريکړې د روحيې پياوړتيا.
- د مسؤوليت منلو امانتداري او رينښتينولۍ د روحيې پالنه .
- د بيلابيلو علمي چارو د برابرولو لپاره د زده‌کوونکو د کار او زيار د ليوالتيا پالنه.
- د زده‌کړې په پړاوونو کې د خپل ځان د استعداد او پياوړتياو دسنجونې د وړتياوو پراختيا.
- د خپلې بدني روغتيا ساتنه

**مدني تعليمات څه ته وايي؟**

مدني تعليمات له هغې پوهې، وړتياوو او ذهنيتونو څخه چې موږ يې د ټولنې، ټولنيزو ګروپونو، حکومتي نظام ، د بشري حقونو، ارزښتونو، او ټولنيزو دودونو، کورنيو او د بهرنيو ټولنيزو بنسټونو نه لاس ته راوړو بحث کوي. مدني تعليمات يوه خپلواکه پوهنه نه ده بلکې داسې يوه پوهه ده چې د ټولنپوهنې له علمي څانګو، حقوق، سياسي پوهنې، ټولنيزې روانشناسۍ د اخلاق پوهنې، انسان پوهنې او د لوست نويو تګلارو لکه، زده کړه او د ژوند وړتياوې، د بشر د حقوقو زده‌کړې، ټولنيزې زده‌کړې او اړيکو سره تړاو لري.

**د مدني تعليماتو د ښوونې اهميت**

انسان ټولنيز موجود دی او انساني ټولنه د ارزښتونو، دودونو، قوانينو او مقرراتو پر بنسټ ولاړه ده. افراد د ټولنې د جوړېدو د بنسټيزو او اساسي غړو په توګه بايد ارزښتونه دودونـه او د هغـه سـازمانونو بنسـټونه او جوړښـت پـه ښـه توګه درک او وپيژني چې وکړای شي د يو پوه او فعال غړي په توګه په هغې کې ژوند وکړي.

هغه مضمون چې د مدني تعليماتو په نامه د افغانستان د اسلامي جمهوريت د معارف په تعليمـي نصـاب کـې ځـای شوي دي له لاندې مـهمو مدني موضـوعاتو او مطلبونـو څخـه بحـث کـوي: ارزښـتونه، دودونـه او د افغـاني ټـولنې عقايد، رسنۍ، د دولتونو ډولونه، د افغانسـتان اسـلامي جمهوريـت اساسـي قـانون، بيـرغ او ملـي سـرود، د ټـولنيزو خدمتونو سازمانونه، د ولسواکۍ (دموکراسي) معنا او ډولونه، ولسواکي په افغانستان کې؛ د بشر حقوق، په افغانستان کـې د بشـر د حقونـو څرنګـوالی، ملګـري ملتونـه، د ملګروملتونـو اصـلي او فرعـي سـازمانونه، د هغـوی دنـدې او همدارنګه په ساده ژبه د ټولنپوهنې ځينې مـهم بحثونه لکه فرهنګ، ټولنيز ګروپونه او ټـولنيز بنسـټونه او ځينـې نـور مسايل له دې امله د مدني تعليماتو ښوونه زده‌کوونکي د افغاني ټولنې له بنسټيزو ارزښتونو، دودونو او عقيـدو سـره آشناکوي. د بشر حقوق او ملګري ملتونه هغوی ته ورپيژني؛ د ټولنپوهنې ځينې ساده اصـول او قاعـدې هغـوی تـه ورزده‌کوي چې له هغوی څخه د ټولنې پوه، فعال او ماهر غړي جوړکړي. د دې مضمون ښوونه به په زده‌کوونکو کې د مدني روحيې او ملي يووالي د رامنځته کيدو لامل وګرځي او له هغو څخه سوله غوښـتونکي، قـانون منـونکي او بانظمه انسانان جوړشي. دا مضمون په ټوله تحصيلي دوره کي ځای په ځای شوی، نو له دې املـه خـورا اهميـت لـري. د مدني تعلماتو اصلي او غوره مطلب د يو هېوادوال ښه روزنه ده، يعنـې هغـه هېـوادوال چـې خپـل او د نـورو حقونـه وپيژني؛ هغه هېوادوال چې د خپل هېواد او ټولنې له ستونزو خبر او په خپلو دندو عمل وکړي؛ رښتني او پاک لمنی واوسي. د هېواد په اداره کې په ولسواکۍ باور ولري او د هېواد د پرمختيا لپاره هڅه وکړي.

**د مدني تعليماتو د زده‌کړې موخې**

تمه ده چې د مدني تعليماتو مضمون دا لاندې پوهنيز، مـهارتي او ذهنيتي موخې لاس ته راوړي.

- زده‌کوونکي له ټولنيزو بنسټونو ( اقتصاد، سياست، ښوونه اوروزنه، دين ) سره آشناکړي؛
- هغوی د افغاني ټولنې له فرهنګ سره آشناکړي؛
- د هېواد ملي نښانونه ( بيرغ او ملي سرود) زده‌کوونکو ته تشريح کړي؛
- د دولت ډولونه او د هغو توپيرونه زده‌کوونکو ته توضيح کړي؛
- د افغانستان د اسلامي جمهوريت ارکان (درې ګونې قوې) تشريح کړي؛
- د هېواد ټولنيزوخدمتونو سازمانونه او د هر يوه دندې زده‌کوونکو ته تشريح کړي؛
- زده‌کوونکي د بشر له حقونو سره آشنا کړي، او د هېواد وضعيت له دې لوري وڅېړي؛
- هغوی له ملګروملتونو او د هغه له اصلي او فرعي سازمانونو سره آشنا کړي؛

- زده‌کوونکي ټولو انسانانو او په ځانګړې توګه د خپلو هېوادوالو په وړاندې مثبت ذهنیت ومومي؛
- زده‌کوونکي باید وکولای شي، چې په ټولنیز، سیاسي، اقتصادي او د کورنۍ او د هېواد د چاپېریال په کارونو کې فعاله ونډه واخلي؛
- زده‌کوونکي باید د منفي پدیدو، لکه: تاوتریخوالي، جګړې ، ترهګرۍ، له نشه يي توکو، نفاق او داسې نورو څخه په ذهني او عملي توګه ځان وساتي.
- زده‌کوونکي باید وکولای شي خپلې دندې د هېواد او اساسي قانون په وړاندې درک او په پلي کولو کې يې هڅه وکړي.

**د ښوونې لیدلورې(ستراتیژي)**

د مدني تعلیماتو په مضمون کې د تعلیمي نصاب لید لورې د نورو ځانګو په څېر دی. دا لیدلورې په دې اصل ولاړدی چې ښوونه او روزنه د زده‌کوونکو په محور څرخي او ښوونکي یوازې د ښوونې چارې آسانه کوي. سمه ښوونه ډول ډول لید لوریو ته اړتیا لري چې د مضمون له طبعیت سره مناسبه وي. له ښاغلو ښوونکو څخه هیله کېږي چې دا لید لوري په ځیر ولولي او له هغو څخه په ټولګي کې له هغو لارښود سره سم چې په دې کتاب کې راغلي، ګټه واخلي. د مدني تعلیماتو غوره لید لوري په لاندې ډول دي:

**۱- د مسئلې حل او پلټنه**

په دې لید لوري کې بنسټيزې پوښتنې طرح کېږي او زده‌کوونکي باید هغو ته ځواب ورکړي. د هغو حل ومومي او دا کار باید د معلوماتو او حقایقو د پلټنې له لارې په لاندې پړاوونو کې سرته ورسوي:

- د مسئلې ټاکنه؛
- د فرضیو او د حل د لارو بیان؛
- د فرضیو د تاییدولو د شواهدو او مدارکو وړاندې کول؛
- پایله

زده‌کوونکي دې په څو ډلو و وېشل شي او د مسئلې د حل د ممکنو لارو په باره کې د ې بحث وکړي. ښوونکي باید زده‌کوونکو ته لارښوونه او له هغو سره مرسته وکړي. هغوی ته دې د اړتیا وړ سرچينې چمتوکړي او دې ته وهڅوي چې د بحث او پلټنې په بهیر کې له خپلو وړتیاوو څخه ګټه واخلي.

**۲- د متن تحلیل**

دا لیدلورې لاندې پړاوونه لري:

- یو متن ( دبېلګې په توګه یو لوست) د څېړنې لپاره تعینوي؛
- زده‌کوونکو ته وخت ورکول کېږي چې متن مطالعه کړي؛
- ښوونکي د هغه مطلب په اړه، چې په متن کې بیان شوي دي، پوښتنې طرح کوي؛
- زده‌کوونکي په ډله ییزه مباحثه کې، هڅه کوي چې ځوابونه ومومي؛

- ښوونکي ډله څاري او د زده‌کوونکو ځوابونه ارزوي چې کوم يو بې  سم او کوم غلط دی.

### ۳ د مفاهيمو شبکې

په دې طريقه کې زد ه کوونکو ته يوشمېر مفاهيم ورکول کېږي چې يو له بل سره تړاو ورکړي. لاندې بيلګې ته ځير شئ:

د اووم ټولګي د مدني تعليماتو مهم مفاهيم زده‌کوونکو ته ورکول کېږي:

د انسان اړتياوې، مادي اړتياوې، معنوي اړتياوې، خواړه، کور، کالي، پيژندنه او پوهه ( آګاهي)، ځان پيژندنه، نرۍ پيژندنه، د خدای (ج) پيژندنه، اړيکې لرل، له خدای (ج) سره اړيکې ، له خلکو سره اړيکې. وروسته له زده‌کوونکو څخه غوښتل کېږي چې د هغوی اړيکې په يوه ګراف (چارت) کې وښيي. د بيلګې په توګه:




### ٤- د زده‌کړې فعاليت

ښوونکي يو فعاليت زده‌کوونکو ته ورکوي او له هغوی نه غواړي چې هغه بشپړ کړي.

د بيلګې په توګه، له زده‌کوونکو نه غواړي چې يوه کورنۍ په نظر کې ونيسي او د کورنۍ غړي کوم موقعيت کې چې  دي وليکي. د بېلګې په توګه پلار، مور، لور، زوي وروسته د هر يوه دنده وليکي او په دې ډول فعاليت بشپړکړي.

**۵- د مستقیم تدریس لید لوری**

هغه وخت د دې طریقې نه ګټه اخیستل کېږي چې ښوونکي غواړي یو مطلب د خبرو لـه لارې وړانـدې کـړي . پـه دې طریقه کې اساسي رول ښوونکي لوبوي. ښوونکي کولی شي له دې طریقې نه د مفاهیمو د ښوونې ( تدریس) او تعمیم ته د رسیدولپاره ګټه واخلي. د خبرو کولو له طریقې نه برسیره، ښاغلی ښوونکي باید لاندې ټکو ته هم پام ولري:

- له زده‌کوونکو سره د موضوع په هکله خبرې او بحث وکړي؛
- د مطلب د پوهولو لپاره باید بېلګې وړاندې شي؛
- زده‌کوونکو ته باید د مفاهیمو په ډلبندۍ د بېلګې په موندلو، د حـل د لارو پـه مونـدلو او داسـې نـورو کـې ونډه ورکړي.

**۲ د ډله ییز فعالیت لیدلوری**

په دې  طریقه کې زده‌کوونکي له څلورو څخه ترشپږو تنو پورې په څو ډلووېشل کېږي د دې طریقې فعاله زده کړه د ښه غوږ نیولو، بحث او خبرو د مهارتونو (ورتیاو)له لارې هڅول کېږي.

په دې کړنلاره کې د هرې ډلې زده‌کوونکي ګډو موخوته د رسیدلو لپاره د یو بل سره کار کوي. ښوونکي کولی شي د ځینو وسایلو څخه له زده‌کوونکو سره د مرستې لپاره ګټه واخلي. دا لیدلوری کومو موضوعاتو ته مناسب دې؟ د ډله ییزی کړنلارې نه کولای شو دساده څېړنو په سرته رسولو، د نقشې په رسمولو، دیوې  نندارې په اجرا او مـدل په جوړولو کې ګټه واخلو.

**۷- د رول لوبولو طر یقه**

دا طریقه د فعالې زده‌کړې د مهمو طریقو څخه شمېرل کیږې، په دې طریقه کې له زده‌کوونکو نه غوښتل کېـږي هغـه رولونه چې په  واقعي ژوندانه کې وجود لري، ولوبوي. ښوونکي باید هـر زده‌کـوونکي تـه د لوبولـو خپـل رول ور پـه ګوته کړي. د بیلګې په توګه: له زده‌کوونکي څخه غوښتل کیږې چې د غریبې تمثیل وکړي.

ښوونکی د زده‌کوونکو په مرسته موضوع ټاکي او د ځانګړو رولونو لپاره کسان غوره کوي. مثلاً لومړی زده‌کـوونکی د غریبو خلکو رول لپاره، دویم زده‌کوونکی د کار وزارت د رول لپـاره او دریـم زده‌کـوونکی د سـوداګر د رول لوبولـو لپاره غوره کوي. وروسته ښوونکی د زده‌کوونکو ارزونه کوي او ټولګی د تمثیـل لپـاره تیـاروي او زده‌کـوونکي خپـل رولونه لوبوي.

**۸- د تمرین میتود**

تمرین یو له هغو فنونو څخه دی چې له ډېرپخوا څخه په زده کړه کې کارول کیږې نن چې د روزنې موخې پوهنیزې، ذهنیتی او مهـارتي برخـو پـه چوکـات کـې تنظیمږي، زده‌کوونکـو تـه د مناسـبوتمرینونو پـه ورکـړه کـې  د ښـوونکو مسؤولیتونه هم زیاتیږي.

تمرین مختلف ډولونه لري، لکه ۱) تکراری (بیاځلی) تمرین ۲) استنباطي تمرین چې د مفاهیمو لـه تفکـر، اسـتدلال او کار اخیستلو سره ملګري دي.

**۹- توضيحي لاره**

توضيحي لاره زده‌کوونکو ته د مستقيمو اطلاعاتو انتقال، د چاپي مطلبونو د لوست تشريح کول او گڼ شمېر نورو وسايلو نه گټه اخيستنه ده.

په دې لاره کې ښوونکي مفاهيم او درسي موضوعات زده‌کوونکو ته وړاندې کوي. د توضيحي لارې له ښه والي څخه يو هم دا دی چې کولای شو په منظمه توگه د حقايقو پوره مجموعه، اصول او مفاهيم زده‌کوونکو ته وړاندې کړو. د دې طريقې نيمگړتيا دا ده چې زده‌کوونکي چمتو شوي مطلبونه تر لاسه کوي. او د حقايقو په کشف کولو کې فعال نه وي.

دا لاره که له نورو طريقو سره يو ځای استعمال شي، گټوره به وي. له توضيحي لارې نه د زياتو علمي مفاهيمو په زده کړه کې کولای شو، گټه واخلو.

**۱۰ د ډله ييزې مباحثې طريقه**

د مباحثې ميتود ډېر پخواني ميتود دی چې د ښوونې او روزنې د تاريخ په اوږدو کې ور څخه گټه اخستل شوې ده. د ډله ييز بحث په پيل کې ښوونکي زده‌کوونکي په ډلو ويشي او هرې ډلې ته د بحث ځانگړې موضوع ټاکي، له زده‌کوونکو څخه غواړې چې د هغې په هکله بحث وکړي او د بحث په پای کې د ډلې له غړو نه يو تن د بحث پايلې نورو زده‌کوونکو ته بيانوي.

ډله ييز بحث ( خبرې) داسې طريقه ده چې د ډلو غړو ته فرصت ورکوي خپل آندونه، عقيدې او تجربې له نورو سره شريکې کړي. که چېرې ښوونکې له ډله ييز بحث څخه څارنه و نه کړي، ممکنه ده د ډله ييز بحث وخت په بې گټو خبرو تير شي.

**۱۱- د پروژې طريقه**

د پروژې د څېړنې، د اطلاعاتو د راټولولو او د لارې د حل د موندلو، مطالعې او د عملي کارونو سرته رسولوته اړتيا لري.

دا طريقه هروخت له ښوونځی نه بهر عملي کېږي. په دې طريقه کې ښوونکی موضوعات د زده‌کوونکو له خوښې سره سم غوره کوي او له هغوی نه غواړې چې د موضوعاتو په هکله اطلاعات را ټول کړي او يا يو فعاليت سرته ورسوي. د بيلگې په توگه د عکاسۍ د دوربينونو په مرسته د منظرو، او انځورونو برابرول، د يوې تاريخي ماڼۍ مطالعه، ديوې کوڅنۍ سيمې د جغرافيوي نقشې برابرول او د ټولنيزې ځانگړې موضوع په هکله مطالعه کول دي.

**د يو ټاکلي ځای يا سيمې ليدل ( سيرعلمي)**

د ځای يا سيمې د ليدلو طريقه له ښوونځي نه بهر يو تجربوي فعاليت دی او له ټولگي نه بهر سرته رسيږي. د بېلگې په توگه: په ښارکې گرځيدل، د يوې کارخانې ،کتابتون او تاريخي آثاروکتنه او يا د يوې ادارې ،کروندې، کان، موزيم، جغرافيوي منظرې او داسې نورو سيموکتنه ده.

دا ضروري نه ده چې زده‌کوونکي دې یو لېرې ځای ته یوړل شي، بلکې د چاپیریال کتنه، چې د پوهنیزو تجاربو د حاصلولو امکانات برابروي، هم په دې میتود کې راتلای شي.

**۱۳- د پوښتنو او ځوابونو طریقه**

د پوښتنو او ځوابونو طریقه هغه متن دی چې کولای شو د ټولو لوستونو په تدریس کې ورڅخه ګټه واخلو؛ په ځانګړې ډول هغه وخت چې ښوونکی وغواړي د زده‌کوونکو پام دیوه نوي مفهموم په هکله فکر کولو ته را واړوي، د دې طریقې نه ګټه اخلي. دا فن ممکن د یوه لوست د مطلبونو د تکرار لپاره، چې پخوا تدریس شوی دی او یا د زده‌کوونکو د پوهې د ارزونې لپاره وکارول شي.

**۱۴- د فکري هڅونې طریقه**

په دې طریقه کې زده‌کوونکي په ټوله معنا خپلواک دي، ټول هغه مطالب چې د دوی ذهن ته رسیږي بې له ځنډه بیان کړي. له دې کبله زده‌کوونکي په غیر ارادي ډول او بې له ځنده له خپلو تیرو لاس ته راوړنو او پوهې نه ګټه اخلي او پراو په پړاو داسې کلمې او جملی بیانوي چې یو د بل تر څنګه له موضوع سره اړوند مطالب تر پوښښ لاندې راولي. د دې طریقې په کارولو کولای شو د زده‌کوونکو پوهه د یوې موضوع په اړوند جوته کړو، د درسي کتاب متن بډای کړو، د زده‌کوونکو پر نفس باندې اعتماد ته وده ورکړو او هغوی دې ته وهڅوو چې د ملګرتیا په فضا کې یو بل ته د خپلې پوهې د وړاندې کولو اقدام وکړي.

**د دې طریقې پړاوونه په لاندې ډول دي**

۱- دښوونکي له خوا د یو عنوان وړاندې کول.۲-د زده‌کوونکو له لوری د مطلبونو، کلمو، جملو بې له ځنډه بیانول.

۳- د تختې پرمخ د زده‌کوونکو د مطلبونو لیکل.۴- د ښوونکي له خوا د مطلبونو ډلبندي. ۵- د ښوونکو له خوا نتیجه اخیستل .ښوونکي باید پام وکړي چې په دې طریقې کې پر چا د نیوکې نیولو نه ډډه وکړي او د اندونو بیان باید په کامله توګه خپلواک وي.

**د زده‌کوونکو د پوهې د ارزونې ستراتیژي**

ارزونه د زده‌کړې موخو ته د رسیدو د کچې د معلومولو وسیله ده. ارزونه ښوونکي ته د زده‌کړې د طریقو او فعالیتونو له بریالیتوب څخه یو روښانه انځور ورکوي.د مدني تعلیماتو د مضمون د ارزونې لپاره نورو مضمونونو ته ورته طریقو څخه کار اخلي، خو د موضوع د توپیر په خاطر له ځینو نه په زیاته او له ځینو نه په کمه اندازه کار اخلي. څرنګه چې ارزونه د روزنې له مهمو کړنلارو څخه ګڼل کیږي، د یوه درس د زده‌کړې لپاره اړینه ده چې د جمود(تلقین او د معلوماتو د یادونې) څخه بهر شي او په ژوندۍ زده کړه( په بحث، تحلیل، تفسیر او د مسایلو په حل) واوړي. د ارزونې ځینې مهمې ستراتیژۍ په لاندې ډول دي:

**د قلم او کاغذ له طریقې څخه استفاده**

په دې طریقه کې له قلم او کاغذ څخه کار اخیستل کیږي. دا طریقه یوه مهمه ستراتیژي ده چې په ځانګړو کارونو کې د زده‌کوونکو ځواک اندازه کوي. په دې طریقه کې زده‌کوونکو ته ورکړ شوي پوښتنې په لیکلې توګه ورته

ځوابوي. له دې طريقې څخه معمولاً په څلورنيم مياشتنيو او کلنيو آزموينو کې ګټه اخيستل کېږي چې د زده‌کوونکو د زده‌کړې اندازه په ټاکلي دوره کې وارزول شي. د يادونې وړ ده چې دا ډول ازموينه يوازې د پيژندنې او پوهې په برخو پورې ترلې پاتې کيږي.

**د کتنې (مشاهدې) طريقه**

په د ې طريقه کې ښوونکی يا کتونکی خپل ټول حواس زده‌کوونکو ته اړوي او په يوه ټاکلي ځاي کې بې تر څارنې لاندې نيسي. د دې څارنې موخه دا ده چې د زده‌کوونکو په هکله معلومات تر لاسه کړل شي او د هغوي د وړتياوو، سلوک او اخلاقو د ارزونې لپاره ترې ګټه واخلي. د کتنې په وخت کې له ډول ډول وسايلو څخه هم ګټه اخيستل کېږي، د مثال په توګه ارزونه کله عددي او کله غير عددي وي. له هغې څخه وروسته ښوونکی بايد دا راټول شوي اطلاعات د کميت له مخې تحليل کړي چې د زده‌کوونکو کمزوري او قوي نقطې پيدا شي. د مشاهدې په ميتود کې بايد له څو ډوله چک ليستونو څخه ګټه واخيستل شي.

چک ليستونه مختلف ډولونه لري. د مثال په توګه د مسايلو په حل کې د زده‌کوونکو د مهارتونو د اندازه کولو چک ليست، د زده‌کوونکو د عملي کارونو د اندازه کولو چک ليست، د اړوندو مهارتونو د اندازه کولو چک ليست. ښوونکی کولای شي په خپله د زده‌کوونکو د سلوک او عمل د کتنې د چک ليست په برابرولو اقدام وکړي. د زده‌کوونکو د مهارتونو د اندازه کولو د چک ليست نمونې ته، چې د مسايلو د حل لپاره په کاريږي، پاملرنه وکړئ: **د مسئلو په حل کې د زده‌کوونکو د وړتياو د کچې معلومولو چک ليست**

| ګڼه | معيار | ضعيف(۱) | منځنی(۲) | ښه(۳) | عالي(۴) |
|---|---|---|---|---|---|
| ۱ | له مناسبې طريقې نه کار اخيستل | | | | |
| ۲ | د مسئالې ځانګړي کول او د هغې تحليل | | | | |
| ۳ | د پايلو وړاندې کول | | | | |
| ۴ | د مطلبونو راغونډول | | | | |
| ۵ | تصميم نيول | | | | |

په دې طريقه کې بايد زده‌کوونکي هغه څه چې بې د خپل واقعي ژوند په اوږدو کې زده کړي دي توضيح کړي يادې فعاليت تر سره کړي چې مهارت يې څرګند شي. په دې طريقه کې هغه معيارونو ته لکه د زده‌کوونکي توضيحات، د نقش يا رول لوبول، په ډله ييزو کارونو کې مرسته کول، د ځانګړو کارونو سرته رسول او نورو زياتو کارونو ته پام کيږي. دمدني تعليماتو په لوستونو کې د زده‌کوونکو د کړنو لپاره د اندازه کولو چک ليست

**د مدني تعليماتو په لوست کې د زده کوونکو د برخې اخيستنې د کچې چک ليست**

| شمير | معيارونه | ضعيف | منځني | ښه | عالي |
|---|---|---|---|---|---|
| ۱ | له دوستانو سره په سمه او فصيحه ژبه اړيکي ټينګوي | | | | |
| ۲ | د ټولو زده‌کوونکو په لور ګوري | | | | |
| ۳ | خوشحاله او پياوړی شخصيت لري. | | | | |
| ۴ | پوښتنوته په زړورتيا او ډاډځواب ورکوي. | | | | |
| ۵ | مفاهيم او اصطلاحات تعريفوي. | | | | |
| ۶ | د محتوا مهم عناصر ټاکي. | | | | |
| ۷ | له درسي موادو نه په سمه توګه ګټه اخلي | | | | |
| ۸ | خپل مطالب په ټاکلي وخت کې سرته رسوي | | | | |

**۳- د اړيکو د وړتياوو د ارزونې چک لست**

دا طريقه له نورو سره د اړيکو ټينګولو د وړتياوو، د زده‌کړې د اندازه کولو لپاره استعماليږي. د مدني تعليماتو د مضمون نصاب د اړيکو د وړتياوو په پر مختيا ولاړدی. په دې ستراتيژۍ کې معلومات د زده‌کوونکو د اړيکو په اړوند فعاليتونو، د تفکر او د مسايلو د حلولو له لارې راغونډيږي.

لاندې مثال ته پاملرنه وکړئ.

**د اړيکو د وړتياوو دکچې چک ليست نمونه**

| ګڼه | د اړيکو وړتياوې | ضعيف | منځني | ښه | ډيرښه |
|---|---|---|---|---|---|
| ۱ | نوروته نوښتګر فکرونه طرح کوي | | | | |
| ۲ | هغه وخت چې مطلب ورته څرګند شي، د نورو خلکو رايه مني او له خپل نظر څخه تېريږي. | | | | |
| ۳ | د نورو نظريوته درناوی کوي. | | | | |
| ۴ | په هغو کارونو کې چې ورته ورسپارل شوي دي، د مسؤوليت احساس کوي | | | | |
| ۵ | له نورو سره مرسته کوي. | | | | |

**د مدني تعليماتو د درسي کړنلارې د عملي کولو وسايل**

د زده‌کړې د اړتياوړ مرستندوي وسايل. توره تخته، تباشير، مارکر، د ښوونکي لارښود کتاب، ورځپاڼې مجلې، ښوونيز چارتونه، فلش کارت، اړوند کتابونه، کمپيوټر او انټرنټ د امکان په صورت کې سلايد.

**د مدني تعليماتو له ښوونکي څخه غوښتنې**:

**الف**: **عمومي صلاحيتونه**

د مدني تعليماتو په علم کې د ليسانس يا لږ تر لږه د مافوق بکلوريا زده‌کړې يا په خپله اړونده څانگه کې له ورستيو اطلاعاتو سره آشنايي، د زده‌کوونکو له عمر او ذهنيتي ځانگړتياو سره آشنايي، د زده‌کړې د ميتودونو او د زده‌کوونکو د پوهې د ارزونو له طريقو سره آشنايي، د ښوونکي له دندې سره مينه او علاقه او ښه اخلاق.

**ب**: **ځانگړي صلاحيتونه**:

د مدني تعليماتو لوستونو د مفرداتو او نورو مختلفو درسونو د تدريس له ميتودونو سره آشنايي

د مختلفو درسونو لپاره د ښوونې د پلان جوړونې قدرت ولري.

د درسي ټولگيو د ادارې قدرت ولري.

د زده‌کړې له مرستندويه وسايلو څخه د گټې اخيستنې قدرت ولري.

۳. د ښوونځي له چارواکو څخه غوښتنه د زده‌کړې لپاره د شرايطو ( د کتابونو، د ښوونکي د درسي لارښود او د زده‌کړې وسايل) برابرول.

- د زده‌کوونکو له والدينو سره د منظمو اړيکو ټينگول

- د تعليمي کال د کړنلارې په عملي کولو کې د پوهنې وزارت پرېکړو ته پاملرنه په ټولگي کې د ښوونکو پر کړنو څارنه او د ښوونکو لارښونه.

- په ښوونځيو کې د کتابتونونو جوړول.

- د زده‌کوونکو د ميندو او پلرونو په مرسته د ښوونکو د اړتياوړکتابونو برابرول.

۴- د زده‌کوونکو د کورنيو څخه غوښتنه د کوچنيانو د زده‌کړې د حالت په هکله له ښوونکو سره د اړيکو ټينگول د خپلو کوچنيانو د درس له پرمختگ څخه خبريدل.

# دویم څپرکی

## د مدني زده کړو د لوست د تدریس لارښود

تاسي درانه ښوونکي د دې لارښود په لومړي څپرکي کې د سریزې او درسي پلانونو د کلیاتو، د تدریس په میتودونو او د ارزونې له طریقو سره آشنا شوئ.

په دې څپرکي کې به د درسي کلني پلان او د هر درس له درسي لاروچارو سره آشنا شئ

**کلنی درسي پلان**

کلنی درسي پلان راښيي چې د یو درسي کتاب محتوا د کال په اوږ دو کې څرنګه وویشل شي.

روښانه ده چې، د کلني پلان جوړول د ښاغلو ښوونکو دنده ده، خو د کار د آسانی او د هېواد د درنو ښوونکو د درسي کړنلارې د یو شان کېدو لپاره د ښوونې پلان د ښوونکي د لارښود په کتاب کې ځای کړ شوي دي.

په دې پلان کې ټول فعالیتونه او هر یو وخت ته ځانګړی شوی وخت ښودل شوی دی، او د ښاغلو ښوونکو کاربیې ډېر آسانه کړی دی.

د پوهنې وزارت له درنو ښوونکو څخه غوښتنه کوي چې له دې لارښود څخه په سمې ګټې اخیستنې د زده‌کوونکو د پوهې د کچې له لوړولو لپاره مرسته وکړي.

| سرلیکونه | د مطلبونو بیان |
|---|---|
| ۱-د لوست موضوع | **دولت او د هغه دندې** |
| ۲- لویه موخه | دولت او دهغه دندو ته د ضرورت په اړه د زده‌کوونکو آشنایي. |
| ۳- کوچنۍ موخې | د دې لوست په لوستلو سره باید زده‌کوونکي:<br>۱- د دولت له مفهوم سره آشناشي؛<br>۲- ټولنې ته د نظم او همغږۍ اړتیا درک کړي؛<br>۳- د دولتونو د منځ ته راتللو؛ څرنګوالي سره آشناشي؛<br>۴- د ولسواکو او زورواکو دولتونو په توپیر پوه شي؛<br>۵- د دولت له دندو سره په لنډه ټوګه آشنا شي؛<br>۶- له ولسواکو نظامونو سره علاقمند شي؛ |
| ۴- د ښوونې لار | ۱- پوښتنې اوځوابونه ۲- وینا دود، د متن تحلیل، ډله ییز فعالیت،پرتله کول. |
| ۵- د زده‌کړې د اړتیا وړ وسایل | ۱- درسي کتاب ؛ ۲- د معلم د لارښود کتاب ۳- تخته او تباشیر. |
| ۶- د ارزونې لار | دمتن تحلیل، ډله ییز فعالیت، پوښتنې او ځوابونه، پرتله کول. |
| ۷- درسي ساعتونه | دا لوست په  دوو برخو وېشل کېږي او هره برخه  په  یو درسي ساعت کې تدریس کېږي. |
| لومړی برخه (په یوه درسي ساعت کې دې تدریس شي) | **د لوست پیل** ( **۵ دقیقې**):<br>سلام اچول، له زده‌کوونکو سره عاطفي اړیکي نیول، د حاضرۍ اخیستل، د تېر لوست پوښتنې، د نوي لوست سره بې اړیکې ټینګول او د لوست په پیل کې انګیزه ورکول.<br>**لومړی فعالیت** (۱۵ **دقیقې**):<br>۱- زده‌کوونکي دې ته اړ باسي چې د فعالیت په اړه  په ډله ییز فعالیت کې خبرې سره وکړي.<br>د زده‌کوونکو ځوابونه د تختې پر مخ یاد داشت کړي؛<br>سم او ناسم ځوابونه سره جلا کړئ او د ځوابونو د غلطی لاملونه توضیح کړئ؛<br>د اړتیا په صورت کې، سم ځوابونه تکمیل کړئ.<br>**د لومړي فعالیت ځوابونه( ۳۰ دقیقې)**<br>۱- د زده‌کړې او درس ویلو د اړتیا د  پوره کولو لپاره؛<br>۲- مدیر،مرستیال، سرښوونکی، ښوونکی اوڅارونکی. |

| | |
|---|---|
| | ۳- هو؛<br>۴- د افرادو په چاروکې د همږغۍ راوستل د ښوونځي د مدیر له لوري صورت نیسي؛<br>۵- غړي نشي کولای چې خپلې دندې په سمه توګه سرته ورسوي او ښوونکی نشي کولای خپلې موخې ته چې د زده‌کوونکو ښوونه او روزنه ده ورسیږي.<br>**لومړی متن (۳۰ دقیقې)**<br>۱- هغه متن چې د ورودي فعالیت نه وروسته راغلی دی، زده‌کوونکو ته ولولئ او تشریح یې کړئ. ( دوینا دود)<br>۲- شکل په تخته وباسئ او له زده‌کوونکو څخه وغواړئ چې تش ځایونه ډک کړي. هغوي ته لارښوونه وکړئ.<br>**کورنۍ دنده:**<br>زده‌کوونکو ته دنده ورکړئ چې د سوالونو ځوابونه تر راتلونکې اوونۍ پیدا کړي. |
| **دویمه برخه (په یوه درسي ساعت کې دې تدریس شي)** | **د لوست پیل (۵ دقیقې)**<br>سلام اچول او له زده‌کوونکو سره دعاطفي اړیکو نیول اود حاضرۍ اخیستل؛<br>**دویم فعالیت (۱۰ دقیقې)**<br>۱- زده‌کوونکو ته فعالیت توضیح کړئ او دهغوي نظریات پر تخته ولیکئ.<br>۲- د زده‌کوونکو نظریات ډلبندي کړئ او د هر ګروپ ګټې او نیمګړتیاوې په جلا توګه ولیکئ.<br>۳- له زده‌کوونکو نه وغواړئ چې ووایي دکوم ګروپ دغړیتوب هیله من دي<br>**د دویم فعالیت ځوابونه:**<br>**د لومړي آند غوره لاملونه:**<br>۱- یو تن په آسانۍ سره تصمیم نیولی شي.<br>۲- د نظر اختلافات منځ ته نه راځي؛<br>۳- له همدې امله، په تصمیم نیولوکې قاطعیت شته دی.<br>**د دویم آند غوره لاملونه:**<br>۱- ټول غړي حق لري چې په تصمیم نیولوکې ګډون وکړي؛<br>۲- په دې توګه د ټولو غړو نظر اخیستل کېږي.<br>۳- څو فکرونه او سلیقې کېدای شي له یو فکر نه ښه وي. چې پایله یې په غور سره د تصمیم نیول وي. |

۴- کله چې خپله غړي تصمیم نیسي، د مسؤولیت احساس کوي او چارې په ښه توګه سرته رسوي.
۵- ټولو غړو ته خوښي او رضایت تر لاسه کېږي او سفر پر ټولو په خوښۍ تېرېږي.

**دویم متن (۱۰ دقیقې)**

متن ولولئ او زده‌کوونکو ته یې تشریح کړئ.

**وروستی برخه:**

**د لوست تکرار (۵ دقیقې)**

۱- هغه لنډیز چې دلته لیکل شوی، د لوست د متن پر بنسټ او د هغه موخو ته په پاملرنه لیکل شوی دی.

۲- زده‌کوونکو ته ورزده کړئ چې د لوست متن څه ډول لنډ شوی دي، چې په راتلونکو لوستونو کې وکولای شي په خپله د لوست لنډیز ولیکي.

**پوښتنې (۸ دقیقې)**

زده‌کوونکو باید له مخکې نه متن په غور سره مطالعه کړی وي او ځوابونه یې تیار کړي وي. د پوښتنې او ځواب له دود نه په استفادې سره، د زده‌کوونکو ځوابونه پرتخته ولیکئ او په پای کې دوی ته وښیاست چې کوم ځوابونه سم او کوم نا سم دي.

د پوښتنو ځوابونه په لاندې ډول دی:

۱- په ټولنه کې دنظم او همږغي د راوستلو لپاره؛

۲- دولت د ټولنې د ټولو برخو ترمنځ همږغي راولي( د زیاتې توضیح لپاره دې شکل ته مراجعه وشي)؛

۳- ولسواکي ( دموکراتیک) دولت او زور واکي ( استبدادي) دولت؛

۴- ۱- د قوانینو جوړول ۲- د قوانینو پلي کول ۳- دبهرنیو او کورنیو تیري کوونکو په وړاندې دهېوادونو د حقوقو ساتل ۴- له سرحدونو څخه څارنه او ساتنه ۵- د هېوادوالو لپاره د ښوونې، روغتیایي او د سوکالۍ د خدمتونو سرته رسول.

**د وروستي فعالیت ځوابونه:**

دولتونه قانون ته د پابندۍ او نه پابندۍ له پلوه په دوو ګروپونو؛ زورواک ( استبدادي) او ولس واک ( دموکراتیک) وېشل کېږي.

په استبدادي دولتونو کې تصمیم نیونه د څو او یا یو تن له خوا تر سره کیږي او پاچا یا رئیس د خلکو په ځان او مال باندې حاکم وي، اما په ولس واکه دولتونو کې تصمیم نیونه د خلکو په لاس کې ده او ټولنه د خلکو د استازو له خوا اداره کېږي.

۱- مـوږ د افغانستان خلک دا غوره ګڼو چې د هېواد اداره د خلکو په لاس کې وي او د یو ولسواک دولت غوښتونکي یو.

۲- زموږ دولت یو ولسواک دولت دی، ځکه چې د اساسي قانون پر بنسټ اداره کیږي.

**وروستی فعالیت (۵دقیقې)**

**۱-** له زده‌کوونکو څخه وغواړئ چې فعالیت په کور کې مطالعه کړي او د کورنۍ د نورو غړو په مرسته دې ځوابونه په کتابچه کې ولیکي او په بل لوست کې دې ټولګي ته راوړي.

**۲-** له څو تنو څخه وغواړئ چې خپل ځوابونه په ټولګي کې ولولي؛

**۳-** د هغوی ځوابونه وڅېړئ او ناسم ځوابونه یې اصلاح کړئ.

## د ښوونکي لپاره اضافي معلومات

**حکومت ته اړتیا:**

دولت ته د ضرورت او دهغه د منځ ته راتلو په هکله د ارسطو د نظریې څخه استفاده شوې ده. ارسطو په دی عقیده و چې دولت د بشر په طبیعت کې نغښتی دی. دولت د انسانانو د اړتیا د پوره کولو لپاره منځ ته راغلی دی، نو د انسان لومړنۍ اړتیا فزیولوژیک یا جسماني اړتیاده چې د کورنۍ د پیدا کیدو لامل وګرځید. مګر همدارنګه انسان خوړو، جامو، اوبو،معدني او ویټامیني موادو او استوګنځي ته هم اړتیا لري. انسان په دې پوهیږي چې هغه او کورنۍ یې په یوازې ډول نشی کولای چې دا ټولې اقتصادي اړتیاوې په ښه توګه ترسره کړي . له دې امله چې انسان ته په پرله پسې ډول نوې اړتیاوې را پیدا کیږي او مادي ژوند ښه والی پیدا کوی، تخصص او د کارویش ډېر ضروري بریښي. له دې امله کورنۍ دطبیعي پراختیا په پایله کې په لویو کورنیو بدلیږي او لویې کورنۍ کلي جوړوي او له کلیو نه ښار منځ ته راځي او د ښار د اداري لپاره یوې لویې موسسې ته اړتیا ده چې هغه له دولت نه عبارت ده.

**دحکومت ډولونه:**

پوهانو حکومتونه په څو ډولونو ویشلي دي چې یو له دې ډولونو څخه زورواکي ( استبدادي) او ولسواکي دولتونه دي. په زورواکي حکومتونو کې د قدرت واګې د یوتن او یا د څو محدودو کسانو په ولکه کې وي چې په خپله اراده او دخلکو غوښتنو ته د هیڅ ډول پاملرنې نه پرته په خلکو حکومت کوي. چې د نولسمې پیړۍ تر پایه په ډېرو هېوادونو کې حکومت په همدې ډول اداره کېده. دې ډول حکومت ته مطلقه حکومت هم وایي. مطلقه حکومتونه کرار کرار په مشروطه حکومتونو تبدیل شول چې په دا ډول حکومتونو کې د پاچا او یا د حکمران واک مطلقه نه دی. او د قانون په واسطه محدودیږي.

له ولسواکو دولتونو نه مقصد هغه سیاسي نظامونه دي چې د ولسواکۍ پر بنسټ جوړ شوي دي نو ځکه په ولسواکو حکومتونو کې حکومت کوونکي خپل ځواک د خلکو په واسطه تر لاسه کوي. په دې ډول حکومتونو کې خلک له بېلا بېلو لارو چې یوه یې هم دټاکنو لاره ده، د هېواد مهموتصمیمونو په نیولوکې دخالت کوي ( د زیاتو معلوماتو د تر لاسه کولو لپاره دي درسي کتاب د دموکراسۍ ( ولسواکۍ) فصل ته مراجعه وشي).

**د دولت دندې:**

**اوسني دولتونه دوه ډوله دندې لري:**

۱- هغه دندې دي چې د هېوادونو تر منځه ګډې دي او کوم توپير پکې نه ليدل کېږي، لکه دا چې له کوم ډول سياسي او اقتصادي سيستم نه برخمن دي؛ د هېواد په د ننه کې د امنيت ساتنه د بهرنيو ګوانښونو په وړاندې له هېواد نه دفاع او په بهرنيو هېوادونو کې د هېواد د اتباعو د حقوقو ساتنه.

۲- هغه دندې چې د سياسي او اقتصادي سيستم په ډول پورې تړلي دي؛ يعنې په سوسيالستي، ليبرالستي، اسلامي او يا تلفيقي نظامونو کې سره توپير کوي. د بيلګې په توګه؛ په پخواني شوروي اتحاد کې اقتصادي فعاليتونه د دولت په واسطه اجرأ کيدل، دولت بازار کنټرولاوه او د خلکو د اړتياوړ توکي به يې هغوی ته وېشل. په داسې حال کې چې هغه هېوادونه چې د آزاد بازار نظام او ليبرالستي اقتصادي او سياسي سيستم لري، له دې چارو څخه يوه يې هم د دولت له دندو نه شمېرل کېږي او دولت پر بازار ډېر لږ کنټرول لري. هغه څه چې په دې لوست کې زموږ تر نظر لاندې دي، د دولت د د ندو هغه برخې دي چې د دولتونو ترمنځ ګډې دي.

| سرلیکونه | د مطلبونوشرح |
|---|---|
| ۱-د لوست موضوع | **د افغانستان له اساسي قانون سره آشنا شو؛** |
| ۲- لویه موخه | د هېواد له اساسي قانون سره د زده‌کوونکو آشنايي؛ |
| ۳- کوچنۍ موخې | د دې لوست له ویلو وروسته باید زده‌کوونکي:<br>۱- د قانون له معنا سره آشناشي؛<br>۲- په دې پوه شي چې کومه قوه د ټولنې دا‌ړتیاوړ قوانین وضع کوي؛<br>۳- د دولت له اجرايي صلاحیت سره آشنا شي؛<br>۴- په ټولنه کې د قانون اهمیت درک کړي؛<br>۵- د اساسي قانون له مفهوم سره آشنا شي؛<br>۶- د هېواد د اساسي قانون مهمې ځانګړتیاوې درک کړي. |
| ۴- د ښوونې لار | ۱- فکري هڅونه ۲- وینا دود- پوښتنې او ځوابونه د د مفاهیمو شبکې |
| ۵- د زده‌کړې د اړتیا وړ وسایل | ۱- درسي کتاب ؛ ۲- د معلم د لارښود کتاب ۳- تخته او تباشیر. ۴- اساسي قانون |
| ۶- د ارزونې لار | د امکاناتو سره سمه د ښوونکو په خوښه. |
| ۷- درسي ساعتونه | دا لوست په درې برخو وېشل کېږي او هره برخه په یو درسي ساعت کې تدریس کېږي. |
| لومړۍ برخه (په یوه درسي ساعت کې دې تدریس شي) | **د لوست پیل ( ۵ دقیقې):**<br>سلام اچول او له زده‌کوونکو سره عاطفي اړیکي نیول، د حاضري اخیستل، ... .<br>**لومړی فعالیت (۵ دقیقې):**<br>د لومړي فعالیت ځوابونه: دا فعالیت دې د فکري هڅونې له ډول په استفاده سره اجراشي.<br>۱- قانون او دستور.<br>۲- د ښوونې او روزنې د وزارت له خوا وضع شوي دي او ځینې يې د ښوونځي د مدیر له لوري.<br>۳- دا قوانین په ښوونځي کې نظم او انضباط راولي.<br>۴- ټولې چارې سمې او صحیح سرته رسیږي.<br>۵- ښوونځي کولای شي خپلو ښونیزو او روزنیزو موخوته په آسانتیا سره ورسیږي.<br>**لومړی متن (۱۰ دقیقې)**<br>متن زده‌کوونکو ته ولولئ او توضیح ورکړئ. ( وینا دود) |

**دویم متن** (۱۰ **دقیقې**)

متن د لوست تر پایه زده‌کوونکوته ولولئ او توضیح ورکړئ. ( وینا دود)

**وروستۍ برخه**:

**د لوست تکرار** (۵ **دقیقې**)

۱-کوم لنډیز چې دلته لیکل شوي دی د لوست د متن په بنسټ او دهغه د موخو په پام کې نیولو سره لیکل شوي دي.

۲- زده‌کوونکو ته ور زده کړئ چې څه ډول د لوست د متن لنډیز شویدی.چې هغوی وکولی شي د راتلونکو لوستونو لنډیز په خپله ولیکي.

**پوښتنې** (۵ **دقیقې**)

- زده‌کوونکو ته وخت ورکړئ چې د سوالونو ځوابونه پیدا کړي.
- د پوښتنې او ځواب دود نه په استفادې سره د زده‌کوونکو سم ځوابونه د تختې پر مخ ولیکئ.

**د پوښتنو ځوابونه په لاندې ډول دي**:

دولتونه دټولنې د نظم د ساتنې لپاره مقررات تعین او اعلانوي چې دې مقرراتو ته قانون وايي.

هغه قوانین چې د دولت او خلکو متقابل حقوق او د ندې بیانوي، اساسي قانون بلل کېږي. دا هغه قوانین دي چې د ټولنې له کړکیچ او بې نظمۍ نه او هم د دولت د ظلم او زورواکۍ نه مخنیوي کوي.

۳- د اساسي قانون مهمې ځانګړنې عبارت دی له: اسلامي وي، د موکراتیک او وګړنیزوي، د بشر د حقوقو رعایت، ټولنیز عدالت او د هر ډول تبعیض نفی کول.

**وروستی فعالیت**( ۵دقیقې)

له زده‌کوونکو څخه وغواړئ چې فعالیت په کورکې مطالعه کړي او د کورنۍ د نورو غړو په مرسته ځوابونه په کتابچوکې ولیکي او په راتلونکي لوست کې یې ټولګي ته راوړي.

## د ښوونکي لپاره اضافي معلومات

**د افغانستان د اسلامي جمهوریت اساسي قانون ۱۲ څپرکي او ۱۲۲ مادې لري**:

| | | | |
|---|---|---|---|
| لومړی څپرکی: دولت | ۲۱مادې | دویم څپرکی: اساسي حقوق او د اتباعو وجیبې | |
| دریم څپرکی: جمهور رئیس | ۱۱ // | څلورم څپرکی: حکومت | ۱۰ مادې |
| پنځم څپرکی: ملي شورا | ۲۹ // | شپږم څپرکی: لویه جرګه | ٦ مادې |
| اووم څپرکی: قضأ | ۷ // | اتم څپرکی: اداره | ۷ // |

نهم څپرکی: داضطرار حالت ٦ مادې لسم څپرکی: تعدیل ٢ مادې

یوولسم څپرکی: متفرقه ٧ // دولسم څپرکی: انتقالي احکام ٥ مادې

**د اساسي قانون توپیر له عادي قوانینو سره په دریو مسئلو کې دی:**

١- اساسي قوانین په داسې تشریفاتو او مقرراتو وضع او تصویبېږي چې عادي قوانین له داسې تشریفاتو څخه برخمن ندي.

٢- د اساسي قانون تفسیر د ځانګړو مراجعو او محاکمو له خوا سرته رسیږي چې د هغو بدلون او تغییر په افغانستان کې یوازې او یوازې د لویې جرګې صلاحیت دی. خو عادي قوانین کیدای شي د مقننه قوې له خوا په آسانه توګه تغییر وکړي.

٣- د اساسي قانون محتوا د خورا مهمواو بنسټیزو دندو درلودونکې ده چې په دولت دارئ او د دولت او ملت ترمنځ حقوقو او دندو پورې اړه لري خو عادي قوانین د هېواد پر روانو او عادي چارو پورې تړاولري.

ځوابونه د اساسي قانون ورته والی له نورو قوانینو سره دا دی چې دواړو ته قانون ویلی شو . چې باید پر هغو عمل وشي.

**داساسي قانون اهمیت:**

د خورا بنسټیزو حکومتي مسائلو درجېدل، د اساسي قانون د اهمیت خورا ربښتینی دلیل دی. اساسي قوانین خاصې ځانګړنې لري چې هغه له عادي قوانینو نه جلا کوي او دهغه هېواد د موضوعه قوانینو د لوړوالي اوغوره توب لامل ګڼل کېږي. چې د اساسي قانون اهمیت توجیه کوي. عادي قوانین باید د اساسي قانون تابع وي، چې دا قوانین د اساسي قانون په پام کې نیولو سره لیکل کېږي. په دې معنا چې اساسي قانون د ټولو قوانینو اصلي او بنسټیز محور دی او د هغو په پرتله خورا لوړه درجه او ډېر اعتبار لري.

اساسي قوانین په داسې تشریفاتو او مقرراتو وضع او تصویبږي چې عادي قوانین له هغو نه برخمن نه دی. او دهغو تفسیر هم د ځانګړو مراجعو او حکمونوله خوا سرته رسیږي چې دهغو تغییر او تبدیل په اسانۍ سره د امکان وړندي. اساسي قوانین کیدای شي له یو بل نه په توپیر سره ولیکل شي. هېڅکه دوه اساسي قوانین نشو موندلي چې یو د بله سره کټ مټ یو شان وي.


**اخځلیکونه ( منابع):**

- مدني، سید جلال الدین، حقوق اساسي و نهاد هاي سیاسي.
- قاضي ابوالفضل،حقوق اساسي و نهادهاي سیاسي، چاپ ششم، موسسسه چاپ و نشر دانشگاه تهران،١٣٧٥
- شیخاء عبد الغریز کلیاتي در بارهٔ قانون اساسي، سرور دانش، قسم، ١٣٨٠

| سرليکونه | د مطلبونو شرح |
|---|---|
| ۱-د لوست موضوع | **خپل سياسي نظام او دولت لانبه وپېژنو.** |
| ۲- لويه موخه | د هېواد له سياسي نظام او دولت سره د زده‌کوونکو آشنايي ؛ |
| ۳- کوچنۍ موخې | د دې لوست له ويلو وروسته بايد زده‌کوونکي:<br>۱- د دولت پر رسمي عنوان پوه شي؛<br>۲- مجلس يا مقننه قوه وپېژني؛<br>۳- د اجراييه قوې په ځينو دندو پوه شي؛<br>۴- د قضايي قوې او لويې جرګې په باره کې لازم اطلاعات ولري؛ |
| ۴- دښوونې لار | ۱- فکري هڅونه ۲- پوښتنه او ځواب ۳- ګروپي مشوره. |
| ۵- د زده‌کړې د اړتيا وړ وسايل | ۱- درسي کتاب ؛ ۲- د معلم د لارښود کتاب ۳- تخته او تباشير. ۴- اساسي قانون. |
| ۶- د ارزونې لار | د ښاغلی ښوونکي په خوښه. |
| ۷- درسي ساعتونه | دا لوست په درې برخو وېشل کېږي او هره برخه په يو درسي ساعت کې تدريس کېږي. |
| لومړی برخه (په يوه درسي ساعت کې دې تدريس شي) | **د لوست پيل** (۱۰ دقيقې):<br>سلام اچول او لـه زده‌کوونکـو سره عـاطفي اړيکې؛ او د حاضرۍ اخيستل د مخکني لوست وروستي فعاليت.<br>**لومړی فعاليت** (**۵ دقيقې**):<br>په دې فعاليت کې د متن د تحليل له طريقې نه استفاده وکړې.<br>**د لومړي فعاليت ځوابونه**<br>۱- قانون په مقننه قوه کې جوړېږي.<br>۲- قوانين د اجرايي قوې په واسطه په ټول هېواد کې پلی کېږي.<br>**لومړي متن** (**۳۰ دقيقې**)<br>۱- متن زده‌کوونکوته ولولئ او توضيح يې کړئ (د متن تحليل طريقه)<br>۲- له ځينو زده‌کوونکو څخه وغواړئ چې د متن يوه برخه ولولي او توضيح يې کړي. |

| | |
|---|---|
| **دویمه قسمت** ( پــه یــوه درســي ســاعت کــې دې تدریس شي) | **د لوست پیل (۵ دقیقې)**<br>سلام اچول او له زده‌کوونکو سره د عاطفي اړیکو نیول او د حاضرۍ اخیستل.<br>**دویم فعالیت ( ۱۰ دقیقې)**<br>زده‌کوونکوته فعالیت توضیح کړئ او د هغوی اندونه (نظرونه) وغواړئ.<br>(د فکري هڅونې دود)<br>**د دویم فعالیت ځوابونه:**<br>څوک چې له قانون نه سرغړونه وکړي، دقضاییه قوې له لورى تر پوښتنې لاندې راځي او سزا ورکول کېږي.<br>**دویم متن (۲۵ دقیقې)**<br>۱- متن ولولئ او توضیح ورکړئ ( وینا دود)<br>۲- له ځینو زده‌کوونکو نه وغواړئ چې د متن یوه برخه ولولي او توضیح ورکړي.<br>**کورنۍ دنده: (۵ دقیقې)**<br>له زده‌کوونکو څخه وغواړئ چې لوست ولولي او وروستۍ برخه دې په کور کې ولولي او ټولګي ته یې راوړي. |
| **دریم قسمت** ( پــه یــوه درســي ســاعت کــې دې تدریس شي) | **د لوست پیل (۵ دقیقې)**<br>سلام اچول او له زده‌کوونکو سره د عاطفي اړیکو ساتل او د حاضرۍ اخیستل.<br>**وروستۍ برخه:**<br>**د درس تکرار ( ۱۰ دقیقې)**<br>۱- قضاییه قوه د افغانستان د اسلامي جمهوریت خپلواک رکن دی او دهغه دنده د هېوادوالو د حقوقو له ضایع کیدونه د مخنیوي او له قانون ماتولو نه مخنیوی دی.<br>۲- زموږ قضاییه قوه مرکبه ده له:۱- ابتداییه محکمې ۲- د استناف محکمې۳- ستره محکمه.<br>۳- لویه جرګه هغه مجلس دی، چې یوازې په افغانستان کې د ایریږي او د ملت د ارادې ښکارندویه ګڼل کېږي. دا مجلس په موقت ډول جوړیږي او د جوړیدو شرایط یې په اساسي قانون کې راغلي دي.<br>**پوښتنې (۱۵ دقیقې)**<br>زده‌کوونکو باید متن په غورسره مطالعه کړی وي او ځوابونه یې چمتو کړي وي.<br>د پوښتنې او ځوابونو ته له دود نه په استفادې سره د زده‌کوونکو ځوابونه پر تخته ولیکئ او په پای کې هغوی ته وښیاست چې کوم سم او کوم ناسم دي. |

**د پوښتنو ځوابونه په لاندې ډول دي**

ا- د ولسي جرگې غړي په آزادو، عمومي، پټو، او مستقیمو ټاکنو کې ټاکل کېږي. خو د مشرانو د جرگې غړي هم د ټاکنو له لار ې او هم په انتصابي ډول وي. د مشرانو جرگې دوه ثلثه غړي د ولایتي او ولسوالی د شورا گانوله منځه دې مجلس ته لاره مومي او یو ثلث یې د با تجربه او پوهو شخصیتونو له جملې څخه د جمهور رئیس له خوا منصوبیږي.

۲- د ملي شورا خورا مهمې دندې عبارت دي له:

- د پرمختیایي کړنلارو تصویب؛
- د دولتي بودجې تصویبول؛
- د نو یو اداري واحدونو ایجادول.
- د نړیوالو معاهدو او هوکړو تصدیقول او یا هوکړو څخه وتل.

**۳- د اجراییه قوې دندې دا دي**

- د اساسي قانون، عادي قوانینواو د محکمو د فیصلو پلي کول؛
- د دولت د مالي بودجې تنظیمول او د هغه وړاندیز ملي شورا ته؛
- د پرمختیایي کړنلارو طرح او تطبیق؛
- د مالي کال په پای کې ملي شورا ته د سرته رسیدلو چارو او د نوي کال د کړنلارو په هکله د رپوټ ورکول.

**۴- د جمهور رئیس دندې**

جمهور رئیس پر درې واړو قواو کې صلاحیتونه لري چې د هغو له جملې نه یې ځینې په لاندې ډول دي:

- د اساسي قانون د سم اجرأ او پلي کیدو څارنه؛
- د وسله والوځواکونو اعلی سرمشري (قیادت)؛
- د وزیرانو ، د سترې محکمې د رئیس، لوی څارنوال د سرې میاشتې رئیس د مرکزي بانک او ملي امنیت د رئیسانو تعینول ، د ولسي جرگې په تایید سره.
- د مشرانو جرگې د یوه ثلث تعینول.

قضاییه قوه له درې برخو نه جوړه شویده: یوه ستره محکمه، د استئناف محکمې او ابتداییه محکمې چې تشکیلات او واکونه یې د قانون لا لارې تنظیمیږي.

لویه جرگه د جمهور رئیس له خوا را غوښتل کېږي، خو له یوه مورد نه پرته،که چېرې د جمهوررئیس د محاکمې لپاره جوړه شوې وي.

**وروستی فعالیت ( ۵ دقیقې)**

له ځوکسانو نه وغواړئ چې خپل ځوابونه په ټولگي کې ولولي؛

دهغو ځوابونه وگورئ او ناسم ځوابونه یې اصلاح کړئ.

| | |
|---|---|
| **د وروستي فعالیت ځوابونه**<br>د درس د متن او د لاربښوونکي لپاره د اضافي معلوماتو نه په استفادې سره د زده‌کوونکو د لیکنو ارزونه وکړئ.<br>**د څپرکي لنډیز (۱۰ دقیقې)**<br>د څپرکي لنډیز زده‌کوونکوته ولولئ اوله هغو نه پوښتنې هم وکړئ. | |

## د ښوونکي لپاره اضافي معلومات

**ملي شورا یا مقننه قوه**

دا قوه د قانون جوړونې په قوه مشهوره ده. په دې معنا چې د دې قوې اصلي دنده د قوانینو یا فرا مینو تصویب، تعدیل او لغوې څخه عبارت ده. د ملي شورا دندې او صلاحیتونه د لوست په متن کې ذکر شوي دی.

اما ولسي جرگه چې له یوې خوا د قانون جوړونی مجلس دی، له بله پلوه ځانگړي صلاحیتونه هم لري چې عبارت دي له:

- د هر وزیر د استیضاح په باره کې له اساسي قانون سره سم د تصمیم نیول.
- د پرمختیایي پروگرامونو او د دولتي بودجې په باره کې د تصمیم نیول.

له اساسي قانون سره سم د مقرریو تائید یا ردول.

**اجراییه قوه یا حکومت**

اجراییه قوه له وزیرانو نه جوړه شوي ده چې د جمهور رئیس تر ریاست لاندې دنده سرته رسوي. د وزیرانو شمېر د اساسي قانون له مخې ټاکل کېږي.

وزیران د هغو دندو په باره کې چې پر غاړه یې لري، د جمهور رئیس او ولسي جرگې په وړاندې مسؤولیت لري. له اساسي قانون سره سم دوی اووه دندې لري چې ځینې یې د لوست په متن کې راغلي دي او ځینې نورې یې عبارت دي له:

د خپلواکۍ ساتنه، د ځمکې له تمامیت نه دفاع، او په نړیواله ټولنه کې د افغانستان د حیثت او گټو ساتنه.

- دعامه نظم او امنیت راوستل او د هر ډول اداري فساد له منځه وړل. نورې دندې چې داساسي قانون سره سمې وي لکه:د تقنیني فرمانونو اعلانول، په داسې حال کې چې ولسي جرگه تعطیل وي او بېړنی ضرورت موجود وي.

**قضاییه قوه**

دا قوه له درې برخو څخه جوړه شوي ده چې په لوست کې یې ذکر شوی دی. د قضاییه قوې په سرکې خورا لوړ ارگان چې د سترې محکمې څخه عبارت دی قرار لري.

قضاییه قوه د ټولو دعواگانو د حل صلاحیت لري.

| سرليکونه | د مطلبونو شرح |
|---|---|
| ۱-د لوست موضوع | **ولسواکي (د موکراسي) څه شی ده؟** |
| ۲- لویه موخه | له ولسواکي سره د زده‌کوونکو آشنايي؛ |
| ۳- کوچنۍ موخې | د دې لوست په لوستلو سره بايد زده‌کوونکي:<br>۱- ولسواکي تعريف کړای شي او د هغه هر اړخيز انځور وښيي؛<br>۲- د مستقيمې او غير مستقيمې ولسواکۍ په توپير پوه شي؛<br>۳- د ولسواکي خورا مهم اصول په ترتيب سره وښيي؛<br>۴- د ولسواکي لنډ شاليد ( تاريخچه) بيان کړي. |
| ۴- دښوونې لار | ۱- فکري هڅونه ۲- وينا دود ۳- پوښتنه او ځواب ۴- گروپي مشوره. |
| ۵- د زده‌کړې د اړتيا وړ وسايل | ۱- درسي کتاب ؛ ۲- د معلم د لارښود کتاب ۳- تخته او تباشير. ۴- اساسي قانون |
| ۶- د ارزونې لار | پوښتنې او ځوابونه، د زده‌کوونکو د معلوماتو ارزونه. |
| ۷- درسي ساعتونه | دا لوست په درې برخو وېشل کېږي او هره برخه په يو درسي ساعت کې تدريس کېږي. |
| لومړی برخه (په يوه درسي ساعت کې دې تدريس شي) | **د لوست پيل ( ۵ دقيقې):**<br>سلام اچول او له زده‌کوونکو سره د عاطفي اړيکو نيول او د حاضري اخيستل( ۵ دقيقې)<br>**لومړي فعاليت ( ۱۰ دقيقې):**<br>دا فعاليت د سؤال او ځواب،فکري هڅونې، د متن د تحليل له طريقې نه په استفادې سره سرته ورسوی.<br>**د لومړي فعاليت ځوابونه:( ۱۰ دقيقې)**<br>تاسې په خپله د ټولگي استازي وټاکئ چې ستاسې خبرې د ښوونځي اداري ته ورسوي چې په ټولگي کې نظم راشي.<br>- په دې گروپونو کې لکه ستاسې گروپ ( ټولگي وال) تصميم د ټولو غړو د اند په بنسټ نيول کېږي او که چېرې ډيره کي (آکثريت )غړي له يوه نظر نه ملاتړ وکړي، هغه نظر د اصلي نظر په توگه او د ټولو د منلو وړدی.<br>**متن ( ۳۰ دقيقې)**<br>۱- متن ولولئ او توضيح ورکړئ ( وينا دود اومستقيم تدريس)<br>۲- له زده‌کوونکو څخه هم وغواړئ چې لوست ولولي اوتوضيح يې کړي. |

| | |
|---|---|
| **کورنۍ دنده**<br>له زده‌کوونکو څخه وغواړئ چې د وروستۍ برخې ځینې ځایونه چې له لومړي متن سره تړاو لري ، په کور کې بې سرته ورسوي. | |
| **د لوست پیل (۵ دقیقې)**<br>سلام اچول، له زده‌کوونکو سره د عاطفي اړیکو ساتل، د حاضرۍ اخیستل او د تیر شوي لوست پوښتنه.<br>**دویم فعالیت (۱۰ دقیقې)**<br>دا فعالیت دې د ډله ییزو بحثونو ، پوښتنو او ځوابونو، پرتله کول د دود نه په استفادې سره سرته ورسیږي.<br>**د دویم فعالیت ځوابونه**<br>- د ولسواکۍ په دوارو ډولونو کې، واک په خلکو پورې اړه لري،خلک باید په حکومتي چاروکي اصلي تصمیم نیوونکي واوسي.<br>- د ولسواکي په دوارو ډولونو کې د عدالت، برابرۍ د بیان آزادۍ ته درناوی، انساني حقوقوته درناوی او د خلکو په وړاندې د دولت د ځواب ورکولو اصول وجود لري.<br>**دویم متن (۳۰ دقیقې)**<br>۱- هغه متن چې له دویم فعالیت نه وروسته راغلی، د وروستي برخې تر پیل پورې د متن د تحلیل او د وینا دود نه په استفادې سره دې زده‌کوونکو ته ولوستل شي او توضیح دې شي.<br>۲- له لومړي او دویم فعالیت نه له زده‌کوونکو څخه سوالونه وکړی چې د هغوی زده کړه او فکر وده وکړي.<br>**کورنۍ دنده**<br>زده‌کوونکي دې په کور کې وروستۍ برخه اجرأ کړي او ځوابونه دې په خپلو کتابچو کې ولیکئ. | **دوهمه برخه** (**په یوه درسي ساعت کې دې تدریس شي**) |
| **د لوست پیل (۵ دقیقې)**<br>د سلام اچول او له زده‌کوونکو سره د عاطفي اړیکو ساتل او د حاضرۍ اخیستل.<br>**وروستني برخه**:<br>**د درس تکرار(۱۵ دقیقې)**<br>۱- په هغو ټولنو کې چې د تصمیم نیولو واک بې د خلکو په لاس کې دی او دولت یوازې دتصمیم نیولو لپاره صلاحیت لرونکي استازي وي، ولسواکي ګڼل کیږي. | **دریمه برخه** (**په یوه درسي ساعت کې دې تدریس شي**) |

۲- ولسواکي یوناني ریښه لري ځکه چې د آتن ښار د دموکراسي په دود اداره کیده.

۳- د لرغوني یونان له دموکراسي څخه وروسته په شلمه پېړۍ کې ولسواکي یو ځل بیا په نړۍ کې مطرح شوه.

۴- نن ورځ تقریباً ټولو دولتونو ولسواکي د خپل حکومت په اداره کې د یو مناسب دود تر سرلیک لاندې منلې ده.

۵- مستقیمه ولسواکي په دې معنا ده چې خلک په مستقیمه توګه خپل واک عملي کوي.

۶- غیر مستقیمه ولسواکي په دې معنا ده چې د خلکو واک د استازو له لارې عملي کېږي.

**پوښتنې( ۱۵ دقیقې)**

۱- په زورواکي ( استبدادي) حکومتونو کې خلک په تصمیم نیولو کې ګډون نه لري. او هېواد د یو یا څو تنو له خوا اداره کېږي. په ولسواکو حکومتونو کې خلک کولی شي په تصمیم نیولو کې ګډون وکړي او د استازو له خوا چې ټاکلي يې دي، د هېواد لپاره تصمیم نیسي.

۲- **ولسواکي ( دموکراسي)**

۳- خلک کله هم په مستقیمه توګه خپل واک عملي کوي، څرنګه چې په لرغوني یونان کې موجود وه. دې ډول حکومت ته مستقیمه ولسواکي وايي.

په غیر مستقیمه ولسواکي کې خلک ددولت ځینې کارکوونکي لکه د پارلمان استازي یعنې د هېواد د قانون جوړونې قوه او په ځینو هېوادونو کې د دولت رئیس په مستقیمه توګه ټاکي او هغوي ته دا صلاحیت ورکوي چې د هېواد د اداره کولو لپاره تصمیم ونیسي، قانون وضع کړي. په دې ډول د تصمیم نیولو صلاحیت چې د هېواد د اداره کولو لپاره استازو ته ورکول کېږي، د خلکو غیر مستقیم واک څخه عبارت دی چې هغې ته غیر مستقیمه ولسواکي وايي.

۴- په اوسنیو ټولنو کې د زیات جمعیت له کبله، د ټولو خلکو را ټولیدل پر یو ځای نامکنه ده همدارنګه، د هېوادونو مسئلې ډېرې پیچلي شوي دي او ټول خلک بحثونو ته د لاس رسی وخت نه لري له دي کبله مستقیمه ولسواکي نن ورځ له امکان نه لرې ده. ۵- د ولسواکۍ مهم اصول دا دي: ۱- د خلکو واکمني.۲- د بشر د اساسي حقوقو تضمین،۳- خپلواکه ټاکنې ،۴- د قانون په وړاندې برابري.

**وروستني فعالیت ( ۱۰ دقیقې)**

**د ځوانانو پارلمان**

پدې هکله د درس متن ته مراجعه وکړي.

## د ښوونکي لپاره اضافي معلومات

**ولسواکي (دموکراسي)**

ولسواکي د لرغونې یوناني کلمېdemos دخلکو په معنا او (cratia) یاkrato) د واک یا ((واکمنۍ)) په معنا ده. له دې کبله ولسواکي( د دموس د واکمنۍ په معنا ده. چې د دموس کلمه د خلکو په معنا استعمالیدله او یا د ( ډېروخلکو) پرځای استعمالیدله. ولسواکي، د یوهېواد تګلاره ده چې په هغه کې ټول هېوادوال عملاً په خپل ځان حکومت کوي. ولسواکي په یوناني مفهوم د خلکو یا د اکثریت د خلکو حکومت په معنا وه. له همدې کبله د آتن حکومت ته ولسواکي وایي چې اداره یې د اکثریت (ډیره کیو) کسانو په لاس کې وه نه د اقلیت ( لږ کیو).او سمهاله ولسواکي خورا ډېره د منلو وړ ده ډېر دولتونه خپل ځان په دموکراسۍ سمبالوي. خو په اوسني وخت کې د دموکراسۍ غوښتنې دغه کچه تاریخ په اوږدو کې د هغې د مقدس توب په معنا نه ده. د هغې عام منل شوی اهمیت په لومړۍ نړیواله جګړه کې ښکاره شو. له هغه مهاله تر اوسه له نیمې پېړۍ زیات وخت تیرېږي. د ولسواکۍ سا په ټولنیز تصمیم پورې اړه لري او په دموکراسۍ کې دوه اصله د توجه وړ دي؛ په ټولینزې پریکړې (تصمیم) باندې هر اړخیز نظارت او د دې نظارت په عملي کولو کې برابر حقونه درلودل.

**برابري**

برابري د ټولنیز ژوند په اوضاع او احوال کې د ( یوشان) ژوند کولو په معنا ده چې د انسان د سوکالی لپاره قطعي او ټاکوونکي ده. د برابرۍ لومړۍ عقیده چې په سیاسي اند او فکر کولو اغېزه لري، هغه عقیده ده چې د (( بنسټېزې برابرۍ)) نوم باید ورکړو. دا په دې معنا ده چې ټول خلک د انساني ګوهر په درلودلو سره، یو له بل سره برابردي. له برابرۍ نه مقصد د دیني، مذهبي، قومي او ټولنیز،جنسي او طبقاتي تبعض له منځه وړل، د یو هېوادوال په توګه د هغه له حقوقو او سوکالیو او د شغلي او اقتصادي امکاناتو او فرصتونو نه په برابر ډول ګټه اخیستل دي.

له اساسي حقوقو لکه د رای ورکولو حق،د اعتراض کولو حق، عالي حکومتي مقامونو ته رسېدل او داسې نورو مدني آزادي نه برخمن کیدنه. برابري د ولسواکۍ له ( اصلي ځانګړنو څخه شمېرل کېږي).

**سیاسي ګډون ( مشارکت)**

سیاسي ګډون د ټولنې په اداره کولو کې د خلکو د برخه اخیستلوپه معنا دی. چې د ټولنې د دوام او ټینګښت لامل ګرځي. مشارکت په سیاست کې د مساوات غوښتنې د اصولو څخه یو مهم اصل شمېرل کېږي.

**د قانون حکومت**

د ولسواکۍ په مبحث کې دا اصل د فردي آزادۍ او حقونو بنسټ او مرستندوی شمېرل کېږي. د قانون حکومت کولی شي د فردي آزادیو حدود او سرحد د نورو د آزادیو، د ټولنې د امن او برابرۍ او داسې نورو په پام کې نیولو سره انځور کړي. دقانون نشتوالي د آزادۍ د اساس او بنسټ له منځه تللو ته لوی ګواښ دی.

**د ولسواکۍ ډولونه**

ولسواکي مختلف ډولونه لري. چې خورا مهم يې دا دي: مستقيمه اونا مستقيمه ولسواکي:

**مستقيمه ولسواکي**

داسې نظام ته وايي چې خلک په مستقيمه توگه واک چلوي. په دې معنا چې د قانون جوړول او د قانون پلي کول دواړه په خپله د خلکو له خوا سرته ورسيږي. د دې ډول ولسواکی شرط د لږ جمعيت اوکوچنۍ ټاټوبی موجوديت دی،چې د ټولو خلکو را ټوليدل په يوه وخت کې شوني وي . او ټول خلک بايد د حکومت د ادارې لپاره د تصميم نيولو کافي وخت ولري. خو اوسمهال د ټولو خلکو د وخت او فرصت دنه درلودلو او دهغوی په يوځای او په يوه وخت کې د راټوليدو د امکان نه درلودلو له امله دا ولسواکي ناشوني ده او يوازې ځينې نښې يې په ځينو هېوادوکې چې ((رفراندوم يا ټول پوښتنه)) کوي، ليدل کيږي. دا ټول پوښتنې هم د حکومت د اداری په ټولو برخوکې نه شامليږي. بلکې يوازې د يوې ځانگړې موضوع په باب ټول پوښتنې کيږي.

**استازي ولسواکي**

په دا ډول نظاموکې د خلکو يا ملت واکمني په مستقيمه توگه خپله د خلکو له خوا نه بلکه د دوی د استازو له خوا عملي کيږي. دا ډول نظام له لويو ټولنو سره مناسب دی، ځکه خلک د دې پر ځای چې په خپله په عمومي ډگر ونوکې را ټول شي او تصميم ونيسي، په عمومي ټاکنوکې خپل استازي ټاکي چې د هغوي په استازيتوب د واک په پلي کولوکې اقدام وکړي.په دې ډول ولسواکۍکې خورا مهم ټکی دا دی چې هېوادوال دگډون حق ولري او دويم دا چې استازيو ته د واک انتقال د يو معلوم وخت لپاره وي.

دا مسئله د دې لامل گرځي چې د واک د عملي کولو په ترڅ کې د استازو د خپل سريو او شخصي تمايلاتو مخنيوي وشي. اوکه چېرته خلک په دې ټاکلي مودوکې د خپلواستازو له کړو وړو څخه راضي نه وي، وکولای شي په راتلونکې دوره کې نوي استازي وټاکي.

د استفادې وړ منابع


بيتهام، ديويد، ولسواکي او د بشر حقوق، ترجمه: محمد تقي د لفروز، انتشارات طرح نو، تهران ۱۳۸۳.

بيتهام، ديويد وبويل،کوين، دموکراسي چيست؟، شهرام نقش تبريزي، ققنوس ،۱۳۷۶.

هيوود، اندرو، مقدمه نظريه سياسي، عبدالرحمان عالم، نشر قومس،۱۳۸۳ .

آر بلا ستر، آنتوني؛ ليراليسم غرب، ظهور و سقوط، ت: عباس مخبر، چاپ اول، نظر مرکز، تهران، ۱۳۷۶.

| سرلیکونه | د مطلبونو شرح |
|---|---|
| ۱-د لوست موضوع | **خلک څنګه کولای شي د دولت په اداره کې ګډون وکړي؟** |
| ۲- لویه موخه | په دولت کې د ګډون له څرنګوالي سره د زده‌کوونکو آشنايي. |
| ۳- کوچنۍ موخې | د دې لوست په لوستلو سره باید زده‌کوونکي:<br>۱- په دولت کې د ګډون په لارو پوه شي؛<br>۲- د ګټور، اغېزمن سیاسي ګډون په معنا او مفهوم پوه شي؛<br>۳- په دې پوه شي چې له کومولارو کولی شي د دولت په کړنو نظارت ولري. |
| ۴- دښوونې لار | ۱- فکري هڅونه ۲- وینا دود ۳- پوښتنې او ځوابونه. |
| ۵- د زده‌کړې د اړتیا وړ وسایل | ۱- درسي کتاب ؛ ۲- د معلم د لارښود کتاب ۳- تخته او تباشیر. |
| ۶-د ارزونې لار | د متن تحلیل، پوښتنې او ځوابونه |
| ۷- درسي ساعتونه | دا لوست په دریو برخو وېشل کېږي او هره برخه په یو درسي ساعت کې تدریس کېږي. |
| لومړی قسمت (په یوه درسي ساعت کې دې تدریس شي) | **د لوست پیل** ( **۵ دقیقې**):<br>سلام اچول او له زده‌کوونکو سره د عاطفي اړیکونیول، د حاضرۍ اخیستل اوتېرشوي لوست پوښتنه او ځواب.<br>**لومړی فعالیت** (**۵ دقیقې**)<br>له زده‌کوونکو څخه وغواړئ چې د فعالیت د موضوع په باره کې سره خبرې وکړي.( د ګروپي بحث دود، تکرارې تمرین).<br>د لومړي فعالیت ځواب:<br>- په اعتراضونو او لاریونونو کې ګډون.<br>- د رای ورکولو له لارې ګډون.<br>- د یو دولتي مقام لپاره د کاندید کیدلو له لارې ګډون او د هغه لاس ته راوړل.<br>- د سیاسي احزابو غړیتوب.<br>**د لوست متن** ( **۱۰ دقیقې**)<br>د لوست متن ولولئ او توضیح یې کړئ( د وینا دود، توضحیي طریقه، |

وروستنۍ برخه.

**د درس تکرار (۱۰ دقیقې)**

په خپله زده‌کوونکو ته وخت ورکړئ چې د درس تکرار برخه بشپړه کړي.

خورا سم لنډیزونه دې د تختې پرمخ ولیکي.

**د لوست د تکرار ځوابونه:**

- ولسواک دولت د هېواد په سیاسي تصمیم نیولو کې د خلکو د ګډون پر بنسټ ولاړ دی.

د خلکو ګډون په سیاسي چارو کې له مختلفو لارو شوني دی.

د خلکو ګډون له داسې لارو لکه: رایه ورکول، په سیاسي ګوندونو کې غړیتوب، دولتي مقامونو ته کاندید کېدل او ......دي.

ګټور سیاسي ګډون د خپلواکو، عمومي، پټو او مستقیمو ټاکنو له لارې کېږي چې خلک په خپله خوښه خپل د پام وړ کس وټاکي.

- په دولت باندې د نظارت لارې لکه: د لوړ پوړو پر تیروتنو نیوکې او دهغوي په ګوته کول .

۲- خپلواکې رسنۍ چې د دولت تېروتنې و وایي.۳- ولسي اعتراضونه او لاریونونه د دولت د ناسمو کړنو په اړه.

**پوښتنې(۱۰ دقیقې)**

زده‌کوونکو ته وخت ورکړئ چې د سوالونو ځوابونه د متن له مخې ومومي. پوښتنه او ځواب، د زده‌کوونکو ځوابونه پر تخته ولیکي او په پای کې هغوي ته په ګوته کړئ چې کوم ځوابونه سم او کوم نا سم دي ( د متن تحلیل).

د پوښتنو ځوابونه په لاندې ډول دي:

۱-ولسواک دولت، د هېواد په سیاسي تصمیم نیولو کې د خلکو د ګډون پر بنیاد ولاړ دی. هر څومره چې د خلکو د ګډون کچه لوړه وي په هماغه پیمانه د دموکراسۍ وړانګې په هغه هېواد کې زیاتې وي.

۲- د سیاسي ګډون لپاره مختلفې لارې موجودي دي. د رای ورکول، په لاریون کې ګډون، د یو دولتي پست د لاس ته راوړلو لپاره کاندید کېدل، د یو دولتي پست لاس ته راوړل او په هغه کې شاملېدل، د سیاسي ګډون (مشارکت) له لارې کېږي.

۳- خلک په برابره توګه په سیاسي چارو کې ګډون نه کوي،ځینې کسان یوازې په ټاکنو کې ګډون کوي او د کاندید انو له جملې یوه ته رایه ورکوي. ځینې کسان د سیاسي ګوند غړي شي او د خپل ګوند د موخو د پرمخ بیولو لپاره فعالیت کوي، ځینې نور کسان د ځان په کاندید کولو سره هڅه کوي چې د دولت پستونو ته ور داخل شي.

لوړ ګروپونه هغه کسان دي چې په ټاکنو کې بريالي شوي او په عمل کې يې دولتي پستونه لاس ته راوړي دي.

**۴-** پر دولتي کسانو نظارت له لاندې لارو څخه شوني دی:

۱- د دولتي مقاماتو پر تير وتنو نيوکې او د هغو بيان. ۲- خپلواکه رسنۍ چې د هغوی تيروتنې په ګوته کړي. ۳- د دولت د ناسمو کړنو په  تړاو د خلکو ولسي  اعتراضونه او لاريونونه.

**وروستی فعاليت (۵ دقيقې)**

زده‌کوونکو ته وخت ورکړئ  چې فعاليت سرته ورسوي( فکری هڅونه).

**د دويم فعاليت ځواب:**

په دې برخه کې موږ ګڼ شمېر بيلګې وړاندې کولای شو.

- زده‌کوونکي کولای شي د خپلې سيمې يو هټۍ وال په نظر کې ونيسي. دا کس کيدای شي د خپلې دندې او سواد له امله يوازې په ټاکنو کې ګډون ولري.

- همدارنګه  زده‌کوونکي کولای شي له خپلو ښوونکو څخه يو د بيلګې په توګه په نظرکې ونيسي. دا ښوونکی کيدای شي په يوه سياسي ګوند کې ګډون ولري او حتی ممکنه ده چې په پارلماني ټاکنو کې هم ځان کانديد کړي.

-کولای شی د پارلمان غړی د بيلګې په توګه راوړی چې همدا اوس د دولت په يو مهم سياسي پست کې په کار بوخت دی. له دې کبله د پارلمان غړی د سياسي ګډون په لوړه کچه کې قرار لري.

| لوړ | | لږ |
|---|---|---|
| د پارلمان غړی | ښوونکی: د سياسي ګوند غړی | هټۍ وال: رای ورکوونکی |

## د ښوونکي لپاره اضافي معلومات

**سياسي ګډون:**

د سياسي ګډون خورا آسانه طريقه ګوندونو، اشخاصو او سياست ته د هېوادوالو رای ورکول دي. نور سياسی ګډون عبارت دي له: انتخاباتی مبارزې، پر سياستوالو خپل نفوذ او اغېز ساتل، ګوندونه د دموکراسۍ د ملاتير کېل کېږي. په حزب کې غړيتوب د سياسی ګډون له خورا مهمو ډولونو څخه شمېرل کېږي.

**سياسي گوندونه له مختلفولارونه د افرادو سياسي گډون تضمينوی**

۱- هغه کسان چې غواړي دولتي چوکی ( پست) تر لاسه کړي، انتخابوي.

۲- هغوی دکړنلارې درلودونکي دي او خلک د دولت د اداره کولو د څرنگوالي په باب له خپلو کړنلارو او سياستونو څخه خبروي. چې خلک په آگاهانه ډول خپلو کانديدانو ته رايه ورکړي.

۳- گوندونه پر حکومت باندې انتقاد کوي ، گوندونه په نيوکو سره دا هڅه کوي چې د حکومت ناسم حرکتونه خلکوته ښکاره کړي او دهغوی د ناسمو چارو پر ځای خپلې سمې کړنلارې وړاندې کوي. په دې ډول د دولت په سمه اداره کې جوړونکی نقش لوبوي.

۴- گوندونه په هغو هڅواو سياليو چې يو له بل سره يې لري، هڅه کوي د خلکو هغه پرگنې چې د حکومت د فعاليتونو په وړاندې بې احساسه او بې اعتنا دي د سياسي گډون ډگرته راوکاږي.

- گوندونه د حکومت او خلکو ترمنځ واسطه ده، گوندونه د حکومت کړنې او اقدامات خلکو ته توضيح کوي او د خلکو غبرگون حکومت ته انتقالوي.

**اخځليکونه**: (**منابع**)


- عالم ، عبدالرحمن، بنياد های علم سياست، تهران، نشرنی، ۱۳۷۳هـ. ش .

| سرليکونه | د مطلبونو شرح |
|---|---|
| ۱-د لوست موضوع | **ولسواکي (دموکراسي) په افغانستان کې.** |
| ۲- لويه موخه | په افغانستان کې د ولسواکي سره د زده‌کوونکو آشنايي |
| ۳- کوچنۍ موخې | زده‌کوونکي د دې لوست په لوستلو سره بايد:<br>۱- په افغانستان کې د ولسواکي له لنډشاليد ( تاريخچې ) سره آشناشي؛<br>۲- د افغانستان په اساسي قانون کې د ولسواکي په اهميت پوه شي؛<br>۳- د ولسواکۍ نښې، لکه د جمهوري رياست ټاکنې او د پارلمان ټاکنې وپېژني.<br>۴- له مدني آزاديو لکه د بيان آزاديو د رسنيود آزاديو سره د ولسواکۍ د نښنوپه توګه آشناشي. |
| ۴- د ښوونې لار | ۱- فکري هڅونه ۲- وينا دود ۳- پوښتنه۴- د متن تحليل ۵- توضيحی طريقه او ځواب |
| ۵- د زده کړې د اړتيا وړ وسايل | ۱- درسي کتاب ؛ ۲- د معلم د لارښود کتاب ۳- تخته او تباشير. |
| ۶- د ارزونې لا ر | پوښتنې او ځوابونه، د زده‌کوونکي د معلوماتو ارزونه. |
| ۷- درسي ساعتونه | دا لوست په دريو برخو وېشل کېږي او هره برخه په يو درسي ساعت کې تدريس کېږي. |
| لومړی قسمت (په يوه درسي ساعت کې دې تدريس شي) | **د لوست پيل ( ۵ دقيقې):**<br>سلام اچول او له زده‌کوونکو سره د عاطفي اړيکو نيول د حاضرۍ اخيستل<br>**لومړی فعاليت (۱۰ دقيقې)**<br>له زده‌کوونکو څخه وغواړئ چې په ګروپونو وويشل شي او فعاليت سرته ورسوي ( ګروپی بحث)<br>**د لومړي فعاليت ځواب:**<br>- د افغانستان دولت يو ولسواک دولت دی ځکه هڅه شوې چې د دموکراسي اصول پکې رعايت شي، د بيلګې په توګه، خلکو دخپلواکو پټو او مستقيمو ټاکنو له لارې جمهور رئيس او همدارنګه د بياټاکنو په ترځ کې يې د پارلمان لپاره خپل استازي وټاکل.<br>- زموږ په اساسي قانون کې دا ټکي په پام کې نيول شوي دي چې د آزادۍ، برابرۍ، عدالت، د ټولو هېوادوالو ګډون، د دولت له لوری ځواب ورکول، دبيان آزادي، د رسنيو آزادي او ......اصول مراعات شي او دولت هم مکلف ګڼل شوی چې دا قوانين په ټولنه کې رعايت کړي. |

| | |
|---|---|
| | **لومړي متن** (۳۰ **دقیقې**)<br>هغه متن ته چې له لومړي فعالیت نه وروسته د دویم فعالیت تر پیل پورې راغلی دی، لومړی متن ویل کېږي.<br>**کورنۍ دنده:**<br>له زده‌کوونکو څخه وغواړئ چې د وروستۍ برخې هغه څېړه چې له لومړي متن سره تړاو لري، سرته ورسوي. |
| **دویمه برخه** (**په یوه درسي ساعت کې دې تدریس شي**) | **د لوست پیل**(**۵ دقیقې**)<br>سلام اچول او له زده‌کوونکو سره د عاطفي اړیکو ساتل او حاضری اخیستل. د تیر شوي لوست پوښتنې:<br>**دویم فعالیت** (۱۰ **دقیقې**)<br>دا فعالیت هم د ګروپي بحث په دود سرته ورسوئ.<br>**د دویم فعالیت ځوابونه:**<br>۱- د افغانستان اساسي قانون یو ولسواک قانون شمېرل کېږي ځکه:<br>- د خلکو په اراد و پورې د  ټولي سیاسي نظام د جوړیدو ټینګار پکې شوی دی؛<br>- د عدالت او برابرۍ د راوستلو تضمین پکې شوي دی.<br>- له هر ډول ظلم، تبعیض، تاوتریخوالي نه پاکې ټولنې او د انساني کرامت د ساتنې اود ټولنیزعدالت غوښتنه پکې شوي ده.<br>- خپلواکې ټاکنې او د واک وېش، د زور زیاتي او خپل سریو مخنیوي لپاره په نظرکې نیول شوي دي.<br>- دولت د ولسواکۍ د ارزښتونو دتطبیق لپاره چې په اساسي قانون کې راغلي دي، هڅې کړي دي چې د هغو له جملې نه لاندې برخو ته اشاره کولای شو:<br>- د جمهوري ریاست ټاکنې په خپلواک، پټ او مستقیم ډول، په ۱۳۸۳ کال کې.<br>- پارلماني ټاکنې په خپلواکه، پټ او مستقیم ډول په ۱۳۸۴ کال کې.<br>- خلک کولای شي په برابره توګه خپل ځان د دولتي چوکیو د لاس ته راوړلو لپاره کاندید کړي او هم خپلو د پام وړ کاندیدانو ته رایه ورکړي.<br>-  د بیان د آزادۍ لپاره هڅه. |

| | |
|---|---|
| **دویم متن (۳۰ دقیقې)**<br>۱- متن زده‌کوونکو ته تشریح کړئ.<br>۲- له زده‌کوونکو څخه پوښتنې وکړئ.<br>**کورنۍ دنده:**<br>له زده‌کوونکو څخه وغواړئ چې وروستۍ برخه په کور کې کاروکړي او د راتلونکي درسي ساعت لپاره باید تیاری ولري. | |
| **د لوست پیل (۵ دقیقې)**<br>سلام اچول او له زده‌کوونکو سره د عاطفي اړیکو ساتل او د حاضري اخیستل.<br>**وروستۍ برخه د لوست تکرار (۱۵ دقیقې)**<br>۱- زموږ په هېواد کې ولسواکي د خپلواکي غوښتونکو د مبارزو له برکته منځ ته راغله مگر د جگړې په پیل کیدو سره یې د نابودۍ لوري ته مخه کړه او د بن له کنفرانس نه وروسته یو ځل بیا په هېواد کې د دموکراتیک حکومت د جوړیدو زمینه مساعده شوه.<br>۲- زموږ د هېواد اساسي قانون د ولسواکۍ د ارزښتونو پر بنسټ ولاړدی، چې په ډېرو مادو کې یې د ولسواکۍ اصول ذکر شوي دي.<br>۳- ټاکنې په افغانستان کې په آزاده، عمومي، مستقیمه او پټه توگه کېږي.<br>۴- ټاکنې ( د جمهوری ریاست، ولسی جرگې او دولتي شوراگانو) د هېواد په سرنوشت کې د خلکو د واکمنۍ د ملي کیدو ننښې څرگندوي.<br>۵- د ولسی جرگې او ولایتي شوراگانو ټاکنې په هېواد کې سرته ورسېدې چې د کاندید کیدلو او رای ورکولو په وړاندې کوم محدودیت موجود نه و.<br>۶- د هېواد په پارلمان او ولایتي شوراگانو کې د ټولو قومونو استازي چې د مختلفو سیاسي نظریو درلودونکي دی حضور لري.<br>**پوښتنې (۱۵ دقیقې)**<br>د زده‌کوونکو د ځوابونو ارزونه او هغوی ته لارښوونه وکړئ.<br>**د پوښتنو ځوابونه:**<br>۱- د افغانستان د اساسي قانون په څلورمه ماده کې د ملی واکمنۍ په باب راغلي دي: | **دریمه برخه**<br>**(په یوه درسي ساعت کې دې تدریس شي)** |

((په افغانستان کې ملي حاکمیت په ملت پورې اړه لري چې په مستقیم ډول یې په خپله یا یې د خپلو استازیو له لارې عملي کوي)) په ولسواکي کې هم واکمني په خلکو پورې اړه لري. له همدې کبله د اساسي قانون څلورمه ماده د ولسواکۍ څرګندویه ده.

۲- آزادي، د هېوادوالو ترمنځه د تبعیض نشتوالی، د قانون په وړاندې برابري او د بیان آزادي، دا هغه اصول دي چې د اساسي قانون په بېلا بېلو مادوکې په صراحت سره تضمین شوي دي.

۳- هو، په ولسواک توګه سرته ورسیده. په هېواد کې د جمهوري ریاست ټاکنې او د ولسي جرګې د استازیو ټاکني د خلکو د حاکمیت په درشل کې ترسره شوې. زموږ خلکو په تاریخ کې د لومړي ځل لپاره وکولای شول د جمهور رئیس په ټاکلو سره د اجراییه خورا لوړ مقام په خپلو آزادو رایو وټاکي.

په دې ټاکنو کې د هېواد ټولو قومونو وکولی شول د دې مقام د لاس ته راوړلو لپاره ځان کاندید کړي او له یو بل سره په سیالۍ لاس پورې کړي.

دا ټاکنې په آزاده، عمومي، مستقیمه اوپټ ډول وشوې.

**وروستی فعالیت** (۱۰ **دقیقې**)

د دې فعالیت په ځواب کې زده‌کوونکي باید په عمومي توګه دغو لاندې ټکو ته پاملرنه وکړي.

۱- د سواد او تحصیلاتوکچه؛

۲- د خلکو په وړاندې د استازي تعهد او پابندي له خلکو سره مینه او د هغوی غوښتنوته درناوی، د اساسي قانون او ولسواکۍ اصولوته پابندي او درناوی.

۳- په سیاسي، اقتصادي، اجتماعي او فرهنګي څېړنو کې برلاسی.

| سرليکونه | د مطلبونو بیان |
|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | **ملګري ملتونه، د جوړېدو لامل يې او د هغه اصلي ارکان.** |
| ۲- لويه موخه | له ملګروملتو سره د زدهکوونکو آشنايي. |
| ۳- کوچنۍ موخې | هيله ده چې زدهکوونکي د دې لوست په لوستلو سره:<br>۱- د سولې او د جګړې د مخنيوي په اهميت پوه شي؛<br>۲- د ملګروملتونو د موجوديت په اهميت پوه شي؛<br>۳- د ملګروملتونو په لنډې تاريخچې باندې پوه شي؛<br>۴- د ملګروملتونو د اصلي څانګواو دندو سره آشنايي پيدا کړي. |
| ۴- دښوونې لار | ۱- فکري هڅونه ۲- وينا دود |
| ۵- د زدهکړې د اړتيا وړ وسايل | ۱- درسي کتاب ؛ ۲- تخته او تباشير. |
| ۶- د ارزونې لار | پوښتنې او ځوابونه، د متن تحليل، د زدهکوونکو له معلوماتو ارزيابي. |
| ۷- درسي ساعتونه | دا لوست په دوه برخو وېشل کېږي او هره برخه بې په يو درسي ساعت کې تدريس کېږي. |
| لومړی قسمت (په يوه درسي ساعت کې دې تدريس شي) | **د لوست پيل ( ۵ دقيقې)**<br>سلام اچول او له زدهکوونکو سره دعاطفي اړيکو نيول او د حاضرۍ اخيستل.<br>**لومړي فعاليت ( ۱۰ دقيقې )**<br>زدهکوونکي دې ته اړ باسئ چې د فعاليت په اړه سره خبرې وکړي.<br>**د لومړي فعاليت ځواب**<br>د ملګروملتونو په نوم يو سازمان وجود لري چې هڅه کوي له جګړې نه مخنيوی وکړي. د جګړې د پېښېدو په صورت کې دا سازمان د خپلو ځواکونو په مرسته د جګړې له پرمختګ نه مخنيوی کوي.<br>**لومړی متن (۱۰ دقيقې)**<br>دا متن چې وروسته له فعاليت نه راغلی دی زدهکوونکو ته ولولئ او توضيح يې کړئ ( وينا دودمستقيم تدريس).<br>**دويم فعاليت ( ۱۰ دقيقې)**<br>فعاليت د متن تحليل په طريقه سرته ورسوئ. |

| | |
|---|---|
| | **د دویم فعالیت ځواب**:<br>ښایي زده‌کوونکي دې فعالیت ته مختلف ځوابونه ورکـړي. ښـاغلي ښـوونکي دې د زده‌کوونکـو ځوابونو ته په پاملرنې سره د هغوی پام لاندې ټکو ته واړوي. د ټولنیزې نېستۍ او نابرابرۍ شتون لکه توکمیز او نژادي توپیرونه(تبعیض) او داسې نور د جنګ او جګړې لامل ګرځي. پـدې توګـه ملګري ملتونه لومړی باید هڅه وکړي چې دې بې وزلوملتونو حقوق د سترو سیاسي قـدرتونو لـه خوا په رسمیت وپېژندل شي ترڅو هېڅ سیاسي قدرت خپل ځانته دا اجازه ورنه کړي چې په بـل ملت باندې یرغل وکړي. دوهم دا چې ملګري ملتونه د کار او کسب د پیدا کولـو پـه لاره کـې چې د نېستۍ دې له منځه وړلو لامل ګرځي هڅه وکړي ځکه کله چې په ټولنـه کـې کـار موجـود وي نو خلک به د خپل ځان او کورنۍ د معاش د لاسته راوړلو لپاره د جنایتکارو ګروپونـو منګلـو ته نه لوېږي. نو دا ډول ګروپونه به د دې وس ونه لـري چې د ټـولنې د نـاامنۍ او نـاارامۍ لامـل وګرځي.<br>**دویم متن (۱۰ دقیقې)**<br>دویم متن تشریح شوي دي، د ضرورت په صورت کې دې له مخې ولوستل شي.<br>**کورنۍ دنده**:<br>زده‌کوونکو ته دې دنده ورکړله شي چې د لوست وروستنۍ برخـه د راتلـونکي درسـي ساعت لپاره سرته ورسوي. |
| **دویمه برخه (پــه یــوه درسي ساعت کــــې دې تدریس شي)** | **وروستۍ برخه**:<br>**د لوست تکرار (۱۵ دقیقې)**<br>د لوست متن او موخې ته په پاملرنې هغه لنډیزونه چې زده‌کوونکو لیکلي دي، وڅېړئ.<br>**پوښتنې (۲۰ دقیقې)**<br>زده‌کوونکو باید متن په ځیر سره مطالعه کړی وي او ځوابونه یـې چمتـو کـړي وي. د پوښـتنې او ځواب دود نه په ګټه اخیستلو سره د زده‌کوونکو ځوابونه پر تخته ولیکئ او په پای کې ورته ووایئ چې کوم سم او کوم نا سم دي.د سوالونو ځوابونه په لاندې ډول دي:<br>- له جګړې نه مخنیوی او د نړۍ د خلکو د ژوند د کچې لـوړول، د نویـو غـړو منل او یـا د پخوانیـو غـړو تعلیق یا ایستل او د امنیت شورا د غیر دایمي غړو ټاکل د عمومي غونډې دندو له جملې څخه دي؛<br>د امنیت شورا دنده د سولې ساتنه ده چې په لاندې دو لاروسرته رسېږي:<br>د اختلافاتو سوله ییز حل او فصل ۲- عملي اقدامات، کله چې سوله د ګواښ او تېري لاندې راځي. |

| | |
|---|---|
| عمومي غونډه، د امنيت شورا، اقتصادي، تولنيزه شورا، د نړيوال عدالت د ديوان او دارالانشأ د سازمان ټولو چارو همغږي سمبالوي او د عمومي غونډې او د امنيت شورا پرېکړې (مصوبې) په مستقيم ډول سرته رسوي او يا دهغه په اجرا څارنه کوي. همدارنګه د ملګروملتو سر منشي کولای شي د امنيت د شورا پاملرنه هرې هغې موضوع ته چې د نړۍ د هېوادونو سولې او امنيت ته خطر وي، واړوي.<br>**وروستی فعاليت**:( ۱۰ دقيقې)<br>له ځوتنو زده‌کوونکو څخه غوښتنه وکړئ چې خپل ځوابونه ولولي؛<br>د هغوی ځوابونه وڅېړئ او نا سم ځوابونه اصلاح کړئ.<br>**د وروستي فعاليت ځوابونه**<br>په دې شعر کې سعدي دې ته اشاره کوي چې انسانان يو له بل سره نه شليدونکي پيوند لري او بايد د ستونزو په حل کې يو د بل لاس نيوی وکړي.<br>ملګري ملتونه هم په همدې بنسټ جوړ شوي دي چې که چېرې کومه ستونزه او يا جګړه په نړۍ کې پيښه شي، نو ټول انسانان له هغې نه زيانمن کېږي. له دې کبله د ټولو دولتونو په هلوځلو سره بايد جګړې په ټوله نړۍ کې ټيټې کچې ته ورسوي. | |

## د ښوونکي لپاره اضافي معلومات

د دويمې نړيوالې جګړې له پيل نه ديوه هراړخيز سازمان د جوړولو لپاره چې وکولی شي سوله راولي او له جګړې نه مخنيوي وکړي زيات شمېر کنفرانسونه جوړشول چې ګام په ګام يې دولتونه د ملګروملتو د تشکيلدو په لوري سره نږدې کړل. د سان فرانسيسکو کنفرانس د ملګروملتود جوړيدو لپاره وروستي ګام و. په دې کنفرانس کې د ملګروملتونو منشور د ۵۱ هېوادو په ګډون د ۱۹۴۵ کال د جون په ۲۵ نېټه د رايو په اتفاق تصويب شو.

د ملګروملتود اصلي ارکانو په باب معلومات د ( موسي زاده رضا، سازمان هاي بين المللي نشر ميزان چاپ هشتم تهران ۱۳۸۲ ) له اخځليک نه وړاندې شول.

**۱- لومړي رکن: د امنيت شورا**

د منشور د ۲۴ مادې په بنسټ، د امنيت شورا د ملګروملتو د اصلي ارکانو له جملې څخه شمېرل کېږي. (( د نړيوالې سولې او امنيت دساتلو مسؤوليت )) پر غاړه لري. د يادونې وړ ده چې د داسې مسؤوليت ورکول د امنيت شورا ته د دامبارتن اوکس د کنفرانس په وړانديز شويو طرحو کې وړاندوينه شوې وه.

البته دا وړاندیز د دویمې نړیوالې جګړې په ترڅ کې شوی و چې د سترو قدرتونو له خوا یې د یو نړیوال سازمان جوړېدل په نظر کې درلودل په واقعیت کې هغه څه چې د ملګروملتو د جوړېدو له پیل څخه د امنیت د شورا په بڼه په پام کې نیول شوي وه، دا وه چې داسې یو کوچنی ارګان دی منځ ته راشي. چې په پرله پسې توګه وکولای شي کله چې سوله امنیت تر ګواښ لاندې راځي، د چټکو او اغیزمنو تصمیمونو اقدام وکړي او د منشور پنځم څپرکی چې په هغه کې د اجباري میکانیزم وړاندوینه شوي ده په کار واچوي))۹۹ مخ.

**د امنیت شورا دندې او واکونه**

د منشور ۲۴ نه تر ۲۵ مادو د امنیت د شورا دندې بیان کړي دي. له دې موادو سره سم د نړیوالې سولې د ساتنې اصلي دنده د امنیت د شورا پر غاړه اچول شوي ده، او د سازمان غړي په دې سره سلا شویدي چې د هغو دندو په سرته رسولو کې چې د دې ذمه واري ( مسؤولیت) له امله یې لري، پر هغو عمل وکړي. له دې اصلي دندو سربیره د امنیت شورا موظفه ده چې د سازمان د موخو او اصولو په چوکاټ کې فعالیت وکړي.یا په بل عبارت، د امنیت د شورا تصمیمونه د منشورله مندرجاتو سره سم وي او په خپل سرپه کړنو لاس پورې نه کړي.

د منشور د ۲۵ مادې مطابق (( د سازمان غړي ژمنه کوي چې د امنیت د شورا تصمیمونه د منشور په ګټه ومني او اجرأیې کړي)) چې د غړو موافقه یوازې د شورا په تصمیمونو پورې اړه لري او ((توصیه نامی)) پکې شاملې نه دي. د دې مادې له ګټې څخه داسې استنباط کېږي، د امنیت شورا د اصلي دندې سرته رسولوکې چې د سولې او نړیوال امنیت ساتنه ده، له دوه طریقه عمل کوي، سوله ییزه مداخله د هغو اختلافاتو په حل کې چې کېدي شي نړیواله سوله او امنیت په خطر کې واچوي، یا د اختلافاتو د حل د وسایلو چمتوکول ( د منشور شپږم څپرکی ) قهرآمیزه مداخله او یا اجباري چلند (۱۰۲ مخ.

**۲- دویم رکن عمومي غونډه**

**۱- د عمومي غونډې ترکیب**

عمومي غونډه د ملګروملتو د نظر د تبادلې او (( مشورې)) ډېر مهم رکن دی چې د سازمان د ټولو غړو په ګډون جوړېږي، هر غړی کولای شي لږ تر لږه پنځه استازي په غونډه کې ولري چې په مجموع کې د یوې رای لرونکي وي. عمومي غونډه د متفاوتو عقایدو د څرګندولو ځای دی(۱۱۹ مخ کې). د ملګروملتو منشور په خپل څلورم څپرکي کې له ۹ تر ۲۲ مادو پورې د عمومي غونډې دندې تعیین کړي دي. په منشورکې ځینې نور مقررات هم د عمومي غونډې په اړوند شته، لکه: ۱۰۸، ۱۰۵، ۱۰۱، ۹۸، ۹۷، ۹۶، ۹۳، ۸۵، ۸۸، ۶۲، ۶۰، ۶۴، ۳۵، ۲۴، ۲۳، ۴، ۷، ۲، ۱، او۱۰۹ مادی. همدارنګه د نړیوالې محکمې د یوان د اساسنامې ۳۳، ۳۲، ۷۱، ۵، ۴، او ۶۹ مادې هم د عمومي غونډې په اړه دي.

**۲- د عمومي غونډې دندې او واکونه:**

د عمومي غونډې استازي چې د کليدي هېوادو له غړيو څخه دي او د منشور د ۱۰ نه تر ۱۷ مادو په اساس دوی ته پراخ واک ورکړ شوي دی، عملاً د نړيوال وجدان ښکارندوی شمېرل کېږي. ډول ډول او زياتو مسائلو ته په پاملرنې سره چې د غونډې په مجلسونو کې بحث او خبرې پرې کېږي کولای شو ووايو چې دې ارگان د نړيوالو په عمومي افکارو کې د پاملرنې وړ نفوذ کړی دی. عمومي غونډه د دې ښيگڼو او پر اخو واکونو درلودلو سره سره نشوکولای يو نړيوال پارلمان وبولو او يا يې د هېوادو کورني پارلمان سره پرتله کړو، ځکه دا غونډه په عمومي توگه د الزامي قوانينو په وضع کولو لاس نه پورې کوي او زياتره پرېکړه ليکونه يې توصيه آميزه دي. ۱۲۲ مخ.

**۳- رکن: د عدل نړيواله محکمه:**

د نړيوالې محکمې ديوان په ملگروملتو کې اصلي قضايي رکن دی او اساسنامه يې هم د نړيوالي محکمې د دايمي ديوان په تړاو تنظيم شوي ده چې د منشور نه بيلدونکی جز گڼل کېږي. د ديوان اساسنامه د ۱۹۴۲ کال د جون په ۲۲ نېټه د ۵۱ دولتونو استازو چې د سان فرانسيسکو په کنفرانس کې يې گډون درلود، لاسليک کړه او د قاضيانو د ديوان ټاکنې ۱۹۴۲ کال د فبرورې په ۵ نېټه د ملگروملتونو د سازمان د عمومي غونډې په لومړي اجلاس کې سرته ورسيدې او د ۱۹۴۲ کال د اپريل په ۱۸ نېټه د دې نوي ديوان کار هم په رسمي توگه د ديوان له غونډې وروسته پيل شو.

**د نړيوالې محکمې واکونه ( صلاحيتونه)**

د دې محکمې صلاحيت د هېوادونو تر منځ اختلافاتو ته د حل د لارې د پيداکولو لپاره يوازې د دعوا د دواړو اړخونو په رضايت پورې اړه لري (( ځکه د محاکمې د حق عملي کول او په نړيوالو چارو کې قضاوت کول د دولتونو د غوښتنې او رضايت څخه پرته ممکنه نده. د دولتونو موافقه د اختلافاتو په حل او فصل کې د قضاوت کول د چلند اصلي او مخکينی شرط دی.)) ۴۹ سربيره پردې دا صلاحيت چې (( قضايي، ترافعی )) صلاحيت نومېږي، ديوان کولای شي د اساسنامې د ۲ مادې مطابق د هرې قضايي مسئلې په هکله د هر سازمان يا موسسې په غوښتنه چې د ملگروملتو په منشور کې د هغه وړاندوينه شويده، مشورتي رايه صادره کړي. (۱۵۱ مخ).

**۴- رکن: د اقتصادي او ټولنيزو شورا گانو واکونه:**

اقتصادي او ټولنيزه شورا د ملگروملتو د اقتصادي او ټولنيزو فعاليتونو اصلي رکن شمېرل کېږي. دا شورا په هغو دندو کې چې د منشور په نهم او لسم څپرکي کې درج دي د عمومي غونډې تر څارنې لاندې عمل کوي ۱۲۲ مخ.

الف د څېړنې ( مطالعاتو) سرته رسول:

د منشور د ۲۲ مادې په بنسټ، اقتصادي او ټولنيزه شورا کولای شي د نړيوالو مسئلو په بارۀ کې چې په اقتصادي، فرهنگي، پوهنيز، روغتيايي او داسې نورو چارو پورې اړه لري خپلې څېړنې او رپوټونه ترسره کړي. او يا هم د هغو د لاس ته راوړلو لپاره اړوند و متخصصينو ته لارښوونه وکړي.

**ب د توصیه نامې صادرول**:

د منشور د ۶۲ مادې د دویم بند مطابق، اقتصادي او ټولنیزه شورا کولای شي، د بشر حقونو ته د واقعي درناوې د هڅونې په خاطر او د ټولو لپاره د بنسټیزو آزادیو توصیه وکړي ۱۶۳ مخ.

**ج: د کنوانسینونو وړاند لیک** ( **پیش نویس**)

اقتصادي او ټولنیزه شورا کولی شي د هغو چارو په اړوند چې صلاحیت یې لري، دکنوانسیونو وړاند لیک عمومي غونډې ته د وړاندې کولو لپاره چمتو کړي. د ځینو کنوانسیونو مصوبه په مستقیمه توګه د اقتصادي او ټولنیزې شورا له خوا برابر یږي او وروسته بیا په عمومي غونډه کې تصویبیږي. لکه: د ډله ییزو وژنو د مخنیوي کنوانسیون)).

**د: د نړیوالو کنفرانسونو جوړیدل**:

اقتصادي او ټولنیزه شورا کولای شي د هغو چارو په اړوند چې صلاحیت یې لري، د ملګروملتو له ټاکلو قواعدو سره سم نړیوال کنفرانسونه جوړکړي. ( د منشور ۴، ۶۲ مادې) دا شورا د نړیوالو کنوانسیونونو د مخ لیکونو د برابرولو سر بیره ،کولای شي د مختلفو موضوعاتو په اړه د کنفرانسونو په جوړولو اقدام وکړي.

هـ: له تخصصي سازمانونو سره مرسته او دهغوی تر منځه همږغي راوستل:

د اقتصادي او ټولنیزې شورا له دندو څخه یوه یې دا ده چې د ملګروملتود سازمانونو تر منځ همږغي راولي ۱۶۴ مخ.

**۵ پنځم رکن: دارالانشأ**:

د منشور له اوومې مادې سره سم، دارالانشأ د ملګروملتونو د اصلي ارکانو څخه شمېرل کېږي.

د منشور ۹۷ مادې له مخې (( دارالانشأ له یوه عمومي منشي او هغه شمېر غړیو چې سازمان یې لازم وبولي، جوړیږي)) ۱۶۵ مخ.

**۱- عمومي منشي**:

د ملګروملتونو عالیترین مقام دی او د دارالانشأ ریاست پر غاړه لري.

**الف: د عمومي منشي د ټاکنې طریقه**:

د عمومي منشي دټاکلو لپاره لومړی د امنیت شورا په یوه خصوصي جلسه کې کاندیدان تر غور لاندې نیسي او وروسته له رای اخیستنې څخه په غیر تشریفاتي ډول د یو پریکړه لیک په صادرولو یو له کاندیدانو څخه د عمومي منشي مقام ته د نامزد په توګه عمومي غونډې ته معرفي کوي. وروسته بیا عمومي غونډه په خپلو خصوصي خبرو آترو کې پر موضوع غور او بیا په عمومي جلسه او د پټورایو له طریقه خپل نظر اعلانوي. د دې مقام د دوام موده په منشور کې نه ده تعیین شوې. خو په ۱۹۴۶ م کال کې عمومي غونډې دا موده پنځه کاله تعیین کړه چې البته د تمدید وړهم ده. ۱۶۶ مخ.

| سرليکونه | مطلبونو بيان |
|---|---|
| ۱-د لوست موضوع | **د ملگروملتوفرعي ارکان او تخصصي سازمانونه؛** |
| ۲- لويه موخه | د ملگروملتو د فعاليت له حوزو سره د شاگردانو آشنايي. |
| ۳- کوچنۍ موخې | د دې درس په لوستلو سره به زده‌کوونکي لاندې ورتياوې لاس ته راوړي؛<br>- د فرعي ارکانو او تخصصي سازمانونو د جوړيدو لامل سره آشنايي.<br>- د دوی تر منځه د توپير درک کول او دهغو دتوپيرونو بيانول.<br>- له يونسکو او د هغه د کاري حوزې سره آشنايي.<br>- د کډوالو په چاروکې د ملگروملتو د کميشنرۍ او دهغې له کاري ساحې سره آشنايي. |
| ۴- دښوونې لار | ۱- فکري هڅونه ۲- وينا دود۳- مستقيم تدريس۴- د متن تحليل۵- د مفاهيمو شبکې. |
| ۵- د زده‌کړې د اړتيا وړ وسايل | ۱- درسي کتاب ؛ ۲- تخته او تباشير۳- د امکان په صورت کې د ملگروملتو، يونيسف، کډوالو په چاروکې د ملگروملتو دخپرونې انځور رونه. |
| ۶- د ارزونې لار | د امکاناتو سره سم او د ښوونکي په خوښه. |
| ۷- درسي ساعتونه | دا لوست په دريو برخو وېشل کېږي او هره برخه په يو درسي ساعت کې تدريس کېږي. |
| لومړی قسمت (په يوه درسي ساعت کې دې تدريس شي) | **د لوست پيل ( ۵ دقيقې):**<br>سلام اچول او له زده‌کوونکو سره عاطفي اړيکي نيول او د حاضرۍ اخيستل.<br>**لومړی فعاليت ( ۱۰ دقيقې):**<br>۱- زده‌کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې انځورونو ته په ځير سره وگوري چې د هغو په باره کې په څه پوهېږي؟<br>۲- د يونسکو،يونيسف او د کډوالو په چاروکې د ملگروملتود کميشنرۍ نومونه د تختې پر مخ وليکئ او څرگنده کړئ چې هر نوم په کوم نشان ( آرم) پورې تړاولري.<br>**لومړي متن (۱۵ دقيقې)**<br>له فعاليت نه وروسته متن زده‌کوونکو ته تشريح کړئ او د لزوم په صورت کې يې د لوست له مخې ولولئ.<br>**دويم فعاليت (۵ دقيقې)**<br>د دويم فعاليت پوښتنې له زده‌کوونکو څخه وپوښتئ (د فکري هڅونې دود) |

| | |
|---|---|
| | **د فعالیت ځواب**: <br> د ملګروملتونو کارکوونکي د کو چنیانو په فکر کې دي په همدې مقصد یو فرعي رکن د ملګروملتونو د کوچنیانو د صندوق تر نامه لاندې جوړشوي دی چې د کوچنیانو د ستونزو د حل لپاره په ټوله نړۍ کې فعالیت کوي. <br> **متن** (**۱۰ دقیقې**). <br> له فعالیت نه وروسته متن تشریح کړئ او د لزوم په صورت کې یې له مخې ولولئ <br> **کورنۍ دنده**: <br> زده‌کوونکو ته دنده ورکړئ چې د لوست د پوښتنوځوابونه تر راتلوونکي اوونۍ پورې پیدا کړي. |
| **دویمه برخه** (**په یوه درسي ساعت کې دې تدریس شي**) | **د لوست پیل** (**۵ دقیقې**) **وروستی برخه**: <br> سلام اچول او له زده کوونکو سره عاطفي اړیکو نیول. <br> **د لوست تکرار** (**۱۵ دقیقې**) <br> محترموښوونکو: د لوست موخوته په پاملرنې سره هغه لنډیزونه چې زده‌کوونکو لیکلي دي، وګورئ. <br> **پوښتنې** (**۱۵ دقیقې** ) <br> ۱- د ملګروملتونو جوړیدل د نړۍ د هېوادو تر منځ د پراخې مرستې پیل وګرځید. د دې مرستو زیاتره په هغو برخو کې دي چې د ملګروملتو په منشور کې یې وړاندوینه نه ده شوې، له دې کبله د ملګروملتو فرعي ارکان فعال شول چې وکولای شي نړیوالې مرستې په ټولو برخو کې پراخې کړي. <br> ۲- چې په دریو کاري ډلګیو وېشل کېږي. <br> (۱) د کرنې د پراختیا موسسې، صنعتي او پولي، بانکي ( اقتصادي؛ <br> (۲) خدماتي او ارتباطي موسسې؛ <br> (۳) ټولنیزې، فرهنګي او روغتیایي موسسې؛ <br> (۴)د بشر په ذهنونو کې د سولې غوښتنې تقویت ، د پوهې او سم تربیت له لارې. <br> (۵) د ملګروملتو له فرعي ارکانونه یو د ملګروملتونو د کوچنیانو صندوق دی چې په لنډډول (( یونیسف نومیږي)) |

| | |
|---|---|
| د یونیسف موخه د نړۍ د کوچنیانو لپاره د یوامن، روغ، ښه خوراک نه برخمن او له ګټورې پوهې او روزنې نه ډک ژوند دی .<br>(۲) د کډوالو او بې ځایه شوو لپاره .<br>**وروستۍ فعالیت** ( ۱۰ دقیقې)<br>(۱) له زده‌کوونکو نه وغواړئ چې خپل ځوابونه په ټولګي کې ولولئ؛<br>(۲) د هغوی ځوابو نه وګورئ او ناسم ځوابونه بې اصلاح کړئ. | |

## دښوونکي لپاره اضافي معلومات

د دې برخې معلومات د ( سازمان هاي بين المللي) د دکتر رضا موسی زاده لیکل شوي کتاب څخه درکړل شوي دي.

د کډوالو لپاره د ملګروملتونو عالي کميساري UNHCR

United Nations High Commissioner for Refogees

د ملګروملتو له خوا له کډوالو نه د حمایت او ملاتړ په اړه لومړي اقدام په ۱۹۲۱ م.کال کې وشو. دې سازمان د کډوالو لپاره د ملګروملتو د عالي کميشنر تصميمونو په اړه لومړی ګام واخيست.
د ملګروملتو په چوکاټ کې لومړی (( د ملګروملتو د مرستې او بيا ودانولو اداره)) وروسته بيا په ۱۹۴۲ م کال کې (( د کډوالو نړيوال سازمان)) چې د ذکر شوې ادارې دندې يې هم پر غاړه درلودلې، جوړشو. له يو څه وخته وروسته، عمومي غونډې په ۱۹۴۹ م .کال کې د کډوالو لپاره د ملګروملتونو د عالي کميشنر د ټاکلوتصميم ونيو. د کډوالو په خاطر د ملګروملتو د عالي کميسارۍ د اساسنامې له تصويب نه وروسته په ۱۹۵۰م کال کې، دې د فتر خپل کار عملاً د ۱۹۵۱م کال د جون په اوله پيل کړ. د دې سازمان مقر په ژنيو کې دی. د دې سازمان دنده له هغو کډوالو نه نړيوال ملاتړ او حمايت دی چې د عالي کميسارۍ له اساسنامې سره مطابقت ولري او همدارنګه دا سازمان د داسې حل لارو په لټه کې دی چې وکولای شي د کډوالۍ ستونزو ته د پای ټکی کېږدي چې خپل متبوع هېواد ته د کډوالو د خپلې خوښې د را ستنيدو سبب وګرځي. د کميسارۍ د اساسنامې د لومړي څپرکي د دويم بند پر بنسټ، د دې سازمان کار غير سياسي دی. او د بشر دوستي او ټولنيزو ملاحظاتو ته په پاملرنه خپلو فعاليتونو ته سمون ورکوي. د دې سازمان د اساسنامې له دويم فصل سره سم، هغه کسان چې د دې سازمان له خوا د کډوالو په توګه پېژندل کېږي، هغه کسان دي چې د نژاد،مذهب، مليت يا د سياسي عقيدې په دليل د تعقيبولوله ډاره له خپل هېواد نه بهر ژوند کوي.

**د ملګروملتونو د کوچنیانو صندوق UNICEF**

په دویمې نړیوالې جګړې کې قرباني شویو تنکیو ځوانانو او کوچنیانو ته د بیړنۍ مرستې درسولو ضرورت تـه پـه پاملرنه، عمومي غونډې په ۱۹۴۶ م.کال په دسامبر کـې د ټـولنیزاو اقتصادي شـورا پـه سپارښـت د ملګروملتـود سازمان نړیوال صندوق جوړکړ. له څه مودې وروسته د ۱۹۵۰ م کال په د سامبر کې د عمومي غونډې د تصمیم پـر بنا، یونیسف خپل ماموریت ته دمخ پر ودې هېوادونو ماشومانو ته د کمک رسولو په خاطر خپل لوري ته بـدلون ورکړ او په پای کې د ۱۹۵۳ م کال د اکتوبر په میاشت کې عمومي غونډې دې سازمان ته د ملګروملتـو د دایمـي رکن عنوان ورکړ او له دې کبله د هغه نوم (( د ملګروملتو د کوچنیانو صندوق)) ته بدلون وکړ.

**د ملګروملتونو د ښوونیز، علمي، فرهنګي سازمان (یونسکو).**

د دویمې نړیوالې جګړې په ترڅ کې د متفقینو د ښوونې او روزنې وزیرانو چې ټول پـه لنـدن کـې اوسـیدل او همـدا ډول یې خپلو فرهنګي فعالیتونو ته دوام ورکاوه، د ۱۹۴۵ م کال د جون د ۱۲ نیټې په پریکړه لیک سـره د بریتانیـا لـه دولت څخه وغوښتل چې د پوهنې او فرهنګ د دایمي سازمان د جوړیدو په اړه یو کنفرانس په لندن کـې ترتیـب کړي چې په هماغه کال جوړشو او څلو ینښتو دولتونو له هغې جملې نه د امنیت شـورا دایمـي غړیـو پـه هغـه کـې حضور درلود. د نوامبر په ۱۶ نیټه (( د ملګروملتو د روزنیـز، علمـي، فرهنګـي سـازمان )) د تاسـیس پـه هکلـه چـې مقرېې په پاریس کې تعیین شوی و، یوه هوکړه لاسلیک شوه. یونسکو د ۱۹۴۶ م.کال په دسامبر کې د یو قـرارداد په ترڅ کې چې د ملګروملتو د سازمان سره لاسلیک شـو، پـه ملګروملتـو پـورې تړلـي پـه یـوه تخصصـي سـازمان تبدیل شو.

| سرليکونه | د مطلبونو بيان |
|---|---|
| ۱-د لوست موضوع | **د ملگروملتو کارنامې**. |
| ۲- لويه موخه | د ملگروملتو له ځينو کړنلارو او پر هغه د بريالتوب له کچې سره د زده‌کوونکو آشنايي. |
| ۳- کوچنۍ موخې | د دې درس په لوستلو سره به زده‌کوونکي زده کړي چې:<br>- د ملگروملتو په چاروکې نيمگړتياوې هم شته.<br>- ملگري ملتونه د جگړې د مخنيوي لپاره په ډول ډول فعاليتونو لاس پورې کوي.<br>- ملگري ملتونه د هېوادونو ترمنځ د اختلافاتو د سوله ييز حل لپاره په اقداماتو لاس پورې کوي.<br>- د ملگروملتو نږدې ټولې برخې په افغانستان کې فعالې دي. |
| ۴- دښوونې لار | ۱- فکري هڅونه ۲- وينا دود۳- پوښتنې او ځوابونه ۴- ډله ايېزه بحث. |
| ۵- د تدريس د اړتيا وړ وسايل | ۱- درسي کتاب ؛ ۲- تخته او تباشير۳- د امکان په صورت کې د ملگروملتو، يونيسف او پناه غوښتونکو په چاروکې د ملگروملتو د خپرونو انځور رونه. |
| ۶- د ارزونې لار | د قلم او کاغذ (کتبي) طريقه. |
| ۷- درسي ساعتونه | دا لوست په دريو برخو ويشل کېږي او هره برخه په يو درسي ساعت کې تدريس کېږي. |
| لومړۍ برخه<br>(په يوه درسي ساعت کې دې تدريس شي) | **د لوست پيل ( ۵ دقيقې)**:<br>سلام اچول او له زده‌کوونکو سره عاطفي اړيکي نيول او د حاضرۍ اخيستل.<br>**لومړي فعاليت (۱۰ دقيقې)**:<br>دا فعاليت دې د فکري هڅونې په طريقه اجرأ شي.<br>**د فعاليت ځواب**:<br>۱- ملگروملتو وکولای شول له نړيوالې جگړې نه مخنيوی وکړي، مگر ويې نشوای کولای چې د هېوادونو ترمنځه د جگړې مخنيوي وکړي.له همدې کبله د ملگروملتونو په موجوديت کې هم په ټوله نړۍ کې د هېوادونو تر منځ د جگړو شاهدان وو. ملگري ملتونه ډېر ځله د خپلو موخو په پلي کولو کې لکه: د فقر له منځه وړلو او د ژوند د سطحې په لوړوالي کې له زياتو هڅو سره سره په پوره توگه بريالی شوي نه دي: |

| | |
|---|---|
| | ۲- په افغانستان کې د ملګروملتو نړدې ټولې برخې فعالې دي. د بن غونډه د ملګروملتو په نوښت د افغانستان په باره کې جوړه شوې وه چې د طالبانو له پرزیدونه وروسته یې وکولای شول، په افغانستان کې له کورنۍ جګړې نه مخنیوی وکړي.<br>**متن** (۳۰ **دقیقې**)<br>له فعالیت نه وروسته متن زده‌کوونکو ته تشریح کړئ او د لزوم په صورت کې یې له مخی ولولئ.<br>**کورنۍ دنده**:<br>زده‌کوونکوته دنده ورکړئ چې ترراتلونکې اوونۍ پورې د پوښتنو ځوابونه ومومي. |
| **دویمه برخه** (**په یوه درسي ساعت کې دې تدریس شي**) | **د لوست پیل** (۵ **دقیقې**)<br>سلام اچول او له  زده‌کوونکو سره د عاطفي اړیکو ساتل او د حاضرۍ اخیستل.<br>وروستۍ برخه:<br>**د لوست تکرار** (۱۰ **دقیقې**)<br>محترمو ښوونکو، د لوست د موخو په پام کې لرلو سره هغه لنډیزونه چې زده‌کوونکو تهیه کړي دي وڅېړئ.<br>**پوښتنې** (۱۰ **دقیقې**)<br>۱- د ملګروملتو له زیاتو اقداماتو سره سره چې په نړۍ کې یې د جګړې د مخنیوي لپاره کړي، بیاهم په  پوره توګه نه دي بریالي شوي چې په نړۍ کې د جګړې مخنیوي وکړي. له دې کبله د ملګروملتو له تشکیل څخه وروسته د زیاتو جګړو شاهدان وو چې د نموني په توګه د خپل هېواد جګړې یادولی شو.<br>۱- نړیوال بانک د خوراک او کرنې نړیوال سازمان، د کرنې پراختیا بانک،د رغونې او پراختیا نړیوال بانک دا ټول په  ملګروملتو پورې تړاولري. چې د نیستۍ ( فقر) سره د مبارزې په ډګرکې فعالیت کوي.<br>۳- د ملګروملتونږدې ټولې برخې په افغانستان کې فعالې دي، د امنیت  شورا د هېواد د امنیت په ټینګولو،یونسکو دفرهنګي میراثونو د ساتنې اویونسف د کوچنیانو د پالنې او د خطرناکو ناروغیو په وړاندې د ښځو او ماشومانو په واکسین کولو سره د افغانستان خلکو ته مرسته رسوي،<br>**وروستی فعالیت** (۱۰ **دقیقې**)<br>۱- له څو تنو زده‌کوونکو څخه وغواړئ چې خپل ځوابونه په ټولګي کې ولولي. |

| | |
|---|---|
| ۲- د هغوځوابونه وخیږئ او ناسم ځوابونه اصلاح کړئ.<br>**د څپرکي لنډيز(۱۰ دقيقې)**<br>د څپرکي د مطلبونو د را په يادولو لپاره، لنډيز له مخې ولولئ. | |

## د ښوونکي لپاره اضافي معلومات

د ملګروملتو د جوړيدو موخه له جګړې څخه مخنيوی وو. د دې سازمان له جوړيدونه وروسته، ټولو دا انتظار درلـود چې له دې وروسته به نور په نړۍ کـې جګـړه نـه پېښـېږي. مګـر د ختيځ او لويـديځ د دوو سـترو قـدرتونو ( پخـواني شوروی او امريکا) ښکاره او پټوسياليود دې موخو د تحقق او پلي کيدو مانع ګرزيـده. سـره لـه دې چې د دې دواړو قدرتونو رقابت په نړۍ کې ډېرې زياتې جګړې را منځته کړې همدارنګه ډېر هېوادونه يې تجزيه کړل چې د بيلګې پـه ډول کولای شو د ويتنام جګړو او د خپل هېواد جګړو ته اشاره وکـړو. د سـتروځواکونو لـه سـيالۍ نـه عـلاوه، ځينـې وخت ديو هېواد د پراختيا غوښتنه هم په بل هېواد د تېري لامل ګرزيدلې. ملګروملتو په ټولـو جګـړو کـې کوښـښ کړی دی چې جګړې پای ته ورسوي. په ځينو جګړو کې ملګروملتو وکولای شول چې له جګړو نه مخنيـوی وکـړي او د پراختيا مخه يې ونيسي، مګر په ځينو برخو کې د ملګروملتو دا هڅې ګټورې واقع نه شوې. لکه د ايران او عراق جګړه چې د ملګروملتو له هڅوسره سره جګړې دوام درلود. د فلسطين او اسراييلو ستونزه هم له هغو مسـائلو څخـه ده چې ملګروملتو ونشوای کولای چې د هغه په حل کيدو بريالي شي. د ملګروملتو د موخو د عملي کيدو او تحقق نه بريالتوب دوه لامله لري  چې عبارت دی له:

۱- ملګري ملتونه د دولتونو په پرتله لوړه مرجع نه ده. د همدی لپاره هغه تصـميمونه چې پـه ملګرومـلتـو کـې نيـول کېږي، منل يې د دولتونو لپاره حتمي نه دي،  له همدې کبله دا دولتونه که چېرته په دې پوه شي چې دا تصميمونه د دوی په ګټه نه دي نو هغه  له پامه غورزوي.

۲- د امنيت شورا د دايمي غړو د حق وړاندوينه شوي ده چې د هغـه پـه بنسـټ هـېڅ تصـميم د دايمـي غـړو لـه موافقې نه پرته نشي نيول کيدای. له دې کبله کيدای شي د يوه دايمي غړي مخالفت د دې سازمان تصميمونه که چېرته ډېر مـهم هم  وي ( وتو) کړي او عملي نشي، د فلسطين په اړه امريکا پـه څـو څـو ځلې د امنيـت د شـورا پريکړه ليکونه  وتو کړي دي. ملګري ملتونه د فقر او نورو موخو په اړه د مبارزې لپاره له بې امنۍ او بې ثباتۍ سره چې لامل يې جګړې دي، له يوې خوا او طبيعي بلاوې لکه: وچکالي له بلې خوا له ستونزو سره مخامخ کړي دي.

**لسم لوست** **وخت:(دوه ساعته)**

| سرليکونه | د مطلبونو بيان |
|---|---|
| ۱-د لوست موضوع | **د بشر حقوق** |
| ۲- لويه موخه | د بشر د حقوقو له مفهوم سره د زده‌کوونکو آشنا بيي او هغه ته درناوی کول. |
| ۳-کوچنۍ موخې | هيله ده چې زده‌کوونکي د لوست په پای کې:<br>۱- د بشر د حقوقو په معنا پوه شي؛<br>۲- د بشرحقوقو ته د اړتيا په لامل پوه شي؛<br>۳- د بشر د حقوقوپه اړه معلومات لاس ته راوړي؛<br>۴- د بشر د حقوقو په اعلاميه کې چې د انسانانو د خورا مهمو حقوقو په باب راغلي دي، زده‌کوونکي آشناشي؛<br>۵- د بشر حقوقو ته درناوی وکړي؛<br>۶- زده کړي چې نه د چا حقوق تر پښنولاندې کړي او هم پرې نږدي چې څوک د دوی حق تر پښنو لاندې کړي. |
| ۴- دښوونې لار | ۱- فکري هڅونه ۲- وينا دود۳- سوال او ځواب ۴- پرتله کول۵- د متن تحليل. |
| ۵ - د تدريس د اړتيا وړ وسايل | ۱- درسي کتاب ؛ ۲- تخته او تباشير |
| ۶- د ارزونې لار | د متن تحليل طريقه |
| ۷- درسي ساعتونه | دا لوست په دريو برخو وېشل کېږي او هره برخه په يوه درسي ساعت کې تدريس کېږي. |
| لومړی برخه (په يوه درسي ساعت کې دې تدريس شي) | **د لوست پيل( ۵ دقيقې)**<br>سلام اچول او له زده‌کوونکو سره عاطفي اړيکي نيول او د حاضرۍ اخيستل؛<br>**لومړي فعاليت (۱۵ دقيقې):**<br>دا فعاليت دې دګروپي بحث په ډول اجراشي.<br>**د فعاليت ځوابونه:**<br>( ځوابونه وليکئ)<br>**متن (۲۵ دقيقې)**<br>هغه متن چې له فعاليت نه وروسته راغلی، زده‌کوونکو ته يې تشريح کړئ او د لزوم په صورت کې بې له مخې ولولئ( مستقيم تدريس دود). |

| | |
|---|---|
| **کورنۍ دنده**<br>زده‌کوونکو ته دې دنده ورکړل شي چې د لوست د پوښتنو ځوابونه تړراتلونکي اوونۍ پورې وموميږ. | |
| **د لوست پیل( ۵ دقیقې)**<br>سلام اچول او له زده‌کوونکو سره د عاطفي اړیکو ساتل او د حاضرۍ اخیستل.<br>**وروستۍ برخه**:<br>**د درس تکرار (۱۵ دقیقې)**<br>محترمو ښوونکو، د لوست د موخو په پام کې لرلو سره، هغه لنډیزونه چې زده‌کوونکو تهیه کړیدي، وڅېړئ.<br>**پوښتنې (۱۵ دقیقې)**<br>۱- د بشر حقوق هغه حقوق اوارزښتونه دي چې باید هر انسان په ژوند کې له هغو نه برخمن وي، لکه: د ژوند کولو حق، د آزادۍ حق، د قانون په وړاندې برابري.<br>-۲د اسلام په دین کې انسان له ځانګړي درناوي نه برخمن دي او ډېر حقوق لري او هېڅوک دا حق نه لري چې هغوي ترې بې برخې کړي.<br>۳- د بشر د حقوقوموخه د ټولنې او افرادو د حقوقود امنیت او سوکالۍ تضمین دی.<br>۴- د بشر د حقوقو نړیواله اعلامیه نړیوال سند دی چې د ملګروملتو په عمومي غونډه کې تصویب شو. دا اعلامیه یو نړیوال خورا مهم سند دی چې موخه یې د ټولو انسانانو لپاره د برابرو حقوقو اوبنسټیزو آزادیو تامینول دي.<br>۱. (۱) د ژوند حق (۲) د شخصي امنیت او آزادۍ حق (۳) د ښوونې او روزنې حق.<br>**د وروستي فعالیت ځواب( ۱۰ دقیقې)**<br>۱- برابري: د حجرات سورت ۱۳ آیت، ۲- عدالت: د مائده سورت ۸ آیت،<br>۳- آزادي: د بقره سورت ۲۵۲ آیت، ۴- د ژوند کولوحق: د النعام سورت ۱۵۱ آیت. | **دویمه برخه**<br>**( په یوه درسي ساعت کې دې تدریس شي)** |

## د ښوونکي لپاره اضافي معلومات

**د بشر د حقوقو د نړيوالې اعلاميې متن**

د بشر د حقوقو نړيواله اعلاميه د ۱۹۴۸ د دسامبر په لسمه د ملګرو ملتو د عمومي غونډې له خوا تصويب شوه عمومي غونډې د بشر د حقوقو نړيواله اعلاميه د ټولو خلکو او ټولو هېوادونو د ګډوهيلو د پوره کېدو په توګه اعلام کړه. چې ټول افراد او د ټولنې ټول غړي دا اعلاميه په پرله پسې توګه په پام کې ولري او هڅه وکړي چې د ښوونې او روزنې له لارې د دې حقوقو او آزاديو درناوی پراختيا پيدا کړي او د ملي او بين المللي تدريجي تدبيرونو پېژندنه اود دې تدبيرونو حياتي او واقعي اجرأکول که د غړو هېوادو تر منځه وي، اوکه د همدې هېوادو په داخل کې د خلکو تر منځه وي، تامين شي. د يادونې وړ ده چې د دې اعلاميې ځينې مادې چې داسلامي ښوونې سره تضاد لري په اسلامي ټولنه کې د تطبيق وړندې. لکه، شپاړسمه ماده: چې د اسلامي ښوونې سره سم مسلمانه ښځه نشي کولی د غير مسلمان سړي سره واده وکړي.

لومړۍ ماده: ټول انسانان آزاد نړۍ ته راځي او د حقوقو او حيثيت له پلوه سره برابردي. ټول د عقل او وجدان درلودونکي دي او بايد يو له بل سره د ورورګلوۍ په روحيه چلند وکړي.

**دويمه ماده**: ۱) هر څوک کولای شي چې د هر ډول توپير پرته په ځانګړي ډول د توکم ، رنګ، جنس، ژبې، مذهب، سياسي عقيدې او هرې بلې عقيدې، مليت ، ټولنيز موقف، شتمنۍ، زيږيدنې يا د هر بل موقف د په نظرکې نيولو پرته هغو ټولو حقونو او آزاديو څخه ګټه واخلي چې په دې اعلاميه کې يې يادونه شوي ده.

۲) له هېڅ سره به د هغه د ملک يا سيمې د سياسي، اداري، قضايي يا نړيوال موقف پر بنسټ تبعيض ونشي، که څه هم هغه ملک يا سيمه چې شخص ور پورې تړلی وي خپلواک، تر لاس لاندې، غير مختار او يا يې حاکميت په يو ډول محدود وي.

**دريمه ماده**: هر څوک د ژوند، آزادۍ اوشخصي امنيت حق لري.

**څلورمه ماده**: نشوکولای هېڅوک په مريېتوب کې وساتو او په هره بڼه د مريېتوب په ډول پيرودل منع دي.

**پنځمه ماده**: نشوکولای چې هېڅوک تربرونې ،کړاو او يا داسې چلند لاندې را ولو چې ظالمانه د انسانيت خلاف او له سپکاوي څخه ډک وي.

**شپږمه ماده**: هر څوک حق لري هر چېرته چې وي، د هغه حقوق او شخصيت د قانون په وړاندې د يو انسان په څېر وپېژندل شي.

**او ومه ماده**: ټول د قانون په وړاندې يو برابردي او حق لري چې له هر ډول تبعيض پرته د قانون له ملاتړ څخه برخمن شي، ټول حق لري چې د هر هغه تبعيض په وړاندې چې له دې اعلاميې څخه سر غړونه کوي او يا دهغې د لمسونې په مقابل کې چې داسې تبعيض ته لمن وهي په برابره توګه د قانون له ملاتړڅخه برخمن شي.

**اتمه ماده**:

د هغو عملونو په وړاندې چې د يو وګړي په بنسټيزو حقونو تېرى وکړي او هغه د اساسي قانون او يا کوم بل قانون له خوا هغه ته ورکړل شوي وي هر څوک حق لري چې صلاحيت لرونکو ملي محکموته مراجعه وکړي.

**نهمه ماده**: هېڅوک په خپل سر توقيف،بندي يا تبعيدکيداى نشي.

**لسمه ماده**: هر څوک بشپړ برابر حق لري چې دعوه يې ديوې ناپييلې او خپلواکې محکمې له خوا په ښکاره او منصفانه توګه تر غور لاندې ونيول شي او دغه شان محکمه د ده په حقونو الزام او يا هره جزا چې په ده لګول شوې وي، لازمه پرېکړه وکړي.

**يوولسمه ماده**:

۱- هر څوک چې په کوم جرم تورن شوى وي حق لري ترهغه بې ګناه وګڼل شي ترڅو يې جرم په داسې يوه ښکاره محاکمه کې ثابت شوى نه وي چې تورن پکې د خپلې دفاع لپاره ټول ضروري او رسمي تضمينونه ولري.

۲- هېڅوک د داسې اعمالو د تر سره کولو يا نه کولو په وجه محکوم کيداي نه شي چې د اجرا کيدلو په وخت کې د ملي يا بين المللي قانون په وړاندې جرم نه شمېرل کيده. دغه راز هېڅوک د يوه جرم د کولو په وجه، له هغه سخته سزانه ويني چې د جرم اجرا کيدو په وخت کې د هغه جرم لپاره تعيين شوې وه.

**دولسمه ماده**: د هېچا په محرميت، کورنۍ، استوګنځي ياليکونو کې نه په خپل سر مداخله او نه يې په نوم او حيثيت تعرض کيداى شي، هر څوک د دې ډول حملو يا مداخلې په مقابل کې د قانوني ساتنې حق لري.

**ديارلسمه ماده**: ۱- هر څوک د هر هېواد په د ننه کې د خپلې استوګنې د ځاى د تغيير او غوره کولو حق لري.

۲- هر څوک حق لري چې د خپل هېواد په ګډون هر هېواد پرېږدي او خپل هېواد ته را ستون شي.

**څوارلسمه ماده**:

۱- هر څوک حق لري چې له ځورونې څخه په نورو ملکونو کې د پناه په لټه کې شي او له هغې څخه ګټه واخلي.

۲- له دغه حق څخه په هغه وخت کې ګټه نه شي اخيستل کيداي، که چېرې تعقيب دغير سياسي جرم او يا داسې اعمالو د کولو په وجه جاري وي چې د ملګرو ملتونو له مقصدونو او اصولو سره مغايرت ولري.

**پنځلسمه ماده:**

۱- هر څوک د تابعیت حق لري.

۲- هېڅوک باید له خپل تابعیت څخه محروم نشي او نه بې باید دا حق باطل شي چې خپل تابعیت ته تغییر ورکړي.

**شپاړسمه ماده:**

۱- ټول بالغ نارینه او ښځینه پرته له هېڅ ډول محدود یته، لکه: نږاد، ملیت یا دین حق لري، چې واده وکړي او کورنۍ تشکیله کړي. دوي د واده کولو، د واده وخت او د هغه په فسخ کولو کې یو شانته حقوق لري.

۲_ واده یوازې په هغه وخت کې کیدای شي، چې ښځه او مېړه پر واده خپله بشپړه خوښه او رضا څرگنده کړي.

۳-کورنۍ د ټولنې طبیعي او بنیادي گرو پی واحد دی او حق لري چې د دولت او ټولنې له خوا وساتل شي.

**اووه لسمه ماده:**

۱. هر څوک حق لري چې یوازې یا له نورو سره په شریکه پانگه ولري،

۲. هېڅوک باید په خپل سر د هغه له پانگې څخه محروم نه شي.

**اتلسمه ماده**[۱]

هر څوک د فکر وجدان او دین د آزادۍ حق لري، په دي حق کې هغه آزادي شامله ده چې خپل دین یا عقیدې ته تغییر ورکړي او دغه راز هغه آزادي چې یوازې یا له نورو سره په گډه، په ښکاره یا خصوصي ډول خپله عقیده یا د دین په تدریس، عمل، عبادت کولو او د د یني مراسمو په اجرا کولو کې څرگند کړي، هم شاملیږي.

**نولسمه ماده:** [۲]

هر څوک د بیان او نظر د آزادۍ حق لري. په دې حق کې هغه آزادۍ شاملې دي چې د خپلو مفکورو او عقیدو څخه کومه وېره ونه لري او په هره وسیله، بې له دې چې سر حدونه په پام کې ونیسي، عقاید او معلومات و پلټي، تر لاسه او خپاره یې کړي.

**شلمه ماده:**

۱. هر څوک حق لري چې په آزاد ډول سوله ییزې ټولنې او ډلې جوړې کړي .

۲. هېڅوک باید په دې مجبور نه شي چې په کومې ډلې پورې وتړلی شي.

۱-۲. دا دوه مادې ( ۱۸-۱۹ ) د افغانستان د اسلامي دولت د اساسي قانون د دریمي مادې سره ښکاره مخالفت لري.چې په دې ماده کې داسې راغلي دي: ( په افغانستان کې هیڅ قانون نشي کولای چې د اسلام د سپیڅلي دین د معتقداتو او احکامو مخالف وي.)

**یوویشتمه ماده:**

۱. هر څوک حق لري چې په مستقیمه یا په آزاد ډول د انتخاب شویو استازو لـه لارې د خپـل هېوادپـه حکومتي چاروکې برخه واخلي.

۲. هر څوک حق لري، چې په برابره توګه په خپل هېواد کې له عامه خدمتونو څخه ګټه واخلي.

۳. د خلکو اراده باید د حکومت د واک بنسټ جوړ کړي، دغه اراده په نوبتي ډول په رښـتینو انتخاباتو کې څرګنده شي،انتخابات باید د رای ورکولو د عمومي او برابر حق له مخې وشي او باید چې د پټې رایې ورکولو او یا درای ورکولو له برابرې او آزادې طریقې سره مطابق ترسره شي.

**دوه ویشتمه ماده:**

هر څوک د ټولنې د یوه غړي په توګه حق لري چې اجتماعي خوندیتوب ولري او د ملي هڅو او نړیوالې همکارۍ له لارې د هر دولت له سازمان او منابعو سره سم هغه اقتصادي، اجتماعي او کلتوري حقـوق تـر لاسه کړي چې د ده د حیثیت او شخصیت د آزادې ودې لپاره ضروري وي.

**درویشتمه ماده:**

۱. هر څوک حق لري چې کـار وکـړي، پـه آزاد ډول دځـان لپـاره کـار انتخـاب کـړي، دکـار مناسـب او عادلانه شرایط ولري او د بې کارۍ په مقابل کې حمایه او حفاظت شي.

۲. هرڅوک بې له کوم تبعیض څخه حق لري چې د برابرکار په مقابل کې برابره اجوره واخلي.

۳. هرڅوک چې کار کوي، د مناسب معاش حق لري چې د ده اود ده د کورنۍ لپاره د بشري کرامت وړ ژوند تضمینوي اوکه ضروري وي حق لري چې د نورو ټولنیزومحافظتي وسایلو په ذریعه تقویه شي.

۴. هرڅوک حق لري چې د خپلو ګټو د ساتلو په غرض صنفي اتحاد بې جوړې کړي او له هغو سره یو ځای شي.

**څلرویشتمه ماده:**

هرڅوک د کار دساعتونود مناسب محدودیت او د با معاشه نوبتي رخصتیو په شمول حق لري چې استراحت او تفریح وکړي.

**پنځه ویشتمه ماده:**

۱. هرڅوک حق لري، د ژوندانه داسې معیار ولري چې د ده د کورنۍ د روغتیا او هوساینې لپاره کافي وي. په دې کې غذا، کالي، کور او روغتیايي ضرورتونه ضروري اجتماعي خدمتونه او د بیمې حق د بیکارۍ، ناروغۍ معیوبتیا او ناتوانۍ، کونډتوب، زوړوالي او په داسې شرایطو کې چې د انسان له ادارې وتلي وي، د معیشت و سایل یې له لاسه ورکړي وي، له عزتمند او پټمن ژوند نه برخمن شي.

۲. میندې او ماشومان د ځانګړې پاملرنې او مرستې مستحق دي. ټول ماشومان که دنکاح په واسطه او یا بې نکاح پیدا شوي وي، د مساوي اجتماعي تحفظ حق لري.

**شپږویشتمه ماده:**

۱. هر څوک د ښوونې اوروزنې حق لري. ښوونه او روزنه باید لږ تر لږه په لومړنیو او اساسي مرحلوکې وړیاوي. لومړني تعلیمات باید اجباري وي، تخنیکي او مسلکي تعلیمات باید په عمومي ډول میسروي او عالي تحصیلات باید د ټولو په مخ د استعداد او لیاقت په اساس خلاص وي.

۲. ښوونه او روزنه باید د انساني شخصیت د بشپړې ودې او بشري حقوقواو اساسي آزادیو ته د احترام د زیاتوالي په لوري سوق شي. ښوونه او روزنه باید د ټولو ملیتونو، نژادونو اودیني ډلو په منځ کې تفاهم ،زغم او دوستي پیاوړې کړي او د ملګروملتونو هڅې د سولې د تقویې لپاره پر مخ بوزي.

۳. میندي او پلرونه د لومړیتوب حق لري چې د ښوونې او روزنې هغه ډول انتخاب کړي چې د دوي ماشومانو ته باید ورکړای شي.

**اوه ویشتمه ماده:**

۱. هر څوک حق لري، په آزاده توګه د خپلې ټولنې په کلتوري فعالیتونو کې برخه واخلي، له هنرونو څخه ګټه پورته کړي او په عملي پر مختګ کې شریک او له ګټو څخه بې برخمن شي.

۲. هرڅوک د خپلو هغو معنوي او مادي ګټو د حفاظت حق لري چې د ده په ذریعه له هر علمي، ادبي او یا هنري تخلیق څخه پیدا شوي وي.

**اته ویشتمه ماده:**

هرڅوک حق لري، په داسې یوه ټولنیز او نړیوال نظام کې ژوند وکړي چې په دې اعلامیه کې بیان شوي حقوق او آزادي ګانې پکې په بشپړ ډول تطبیق شي.

**نهه ویشتمه ماده:**

۱. هر څوک په هغې ټولنې کې دندې او مکلفیتونه لري چې یوازې هلته د ده د شخصیت آزاده او بشپړه وده ممکنه وي.

۲. هر څوک باید د خپلو حقوقو او آزادیو په عملي کولو کې یوازې د هغو محدودیتونو تابع وی چې د قانون په ذریعه صرف د دې لپاره تعیین شوي وي چې د نورو د آزادیو او حقوقو په مناسب ډول احترام وشي او وپیژندل شي او په یوه دموکراتیکه ټولنه کې د اخلاقي موازینو د مقتضیاتو، عامه نظم او هوساینې مراعات وشي.

۳. دغه حقوق او آزادي باید په هېڅ صورت د ملګروملتونو د اصولو او مقصدونو په خلاف عملي نه شي.

**دېرشمه ماده:**

په دې اعلامیه کې هېڅ یوه فقره یا ماده باید داسې تعبیر نه شي چې کوم دولت، ډلې یا شخص ته د دې حق ورکړي، په داسې فعالیت لاس پورې کړي یا داسې کار اجرا کړي چې هدف يې په دي اعلامیه کې د ذکر شویو حقوقو او آزادیو لغوه کول وي.

| سرليکونه | د مطلبونو بيان |
|---|---|
| ۱-د لوست موضوع | **په افغانستان کې د بشرد حقوقو شاليد او وضعيت.** |
| ۲- لويه موخه | په افغانستان کې د بشر د حقوقو له وضعيت سره آشنايي. |
| ۳-کوچنۍ موخې | له زده‌کوونکو نه هيله کېږي چې د دې لوست په ويلو سره:<br>۱- په افغانستان کې د بشر له حقوقو سره آشنا شي؛<br>۲- د بشر د حقوقو له خپلواک کميسيون سره آشنا شي؛<br>۳- د بشر له حقوقو نه د تيري موارد وپېژني او دهغه په وړاندې منفي نظر پيدا کړي.<br>۴- هغه موارد چې کيداې شي، د بشر د حقوقو له کميسيون څخه مرسته وغوښتل شي، وپېژني.<br>۵- وکولای شي په ضروري وختونو کې د بشر د حقوقو له کميسيون څخه مرسته وغواړي. |
| ۴- د ښوونې لار | ۱- فکري هڅونه ۲- وينا دود۳- پوښتنې اوځوابونه ۴- پرتله کول۵- ډله ايیز ګروهي بحث<br>۶- ارزونه. |
| ۵ -د تديس د اړتيا وړ وسايل | ۱- درسي کتاب ؛ ۲- تخته او تباشير |
| ۶- د ارزونې لار | د زده‌کوونکو دمعلوماتو د ارزيابي طريقه د متن تحليل. |
| ۷- درسي ساعتونه | دا لوست په دريو برخو وېشل کېږي او هره برخه په يو درسي ساعت کې تدريس کېږي. |
| لومړۍ برخه<br>(په يوه درسي ساعت کې دې تدريس شي) | **د لوست پيل (۵ دقيقې)**<br>سلام اچول او له زده‌کوونکو سره عاطفي اړيکي نيول او د حاضرۍ اخيستل؛<br>**لومړي فعاليت (۱۰ دقيقې):**<br>د لومړي فعاليت په باره کې له زده‌کوونکو سره خبرې وکړئ ، د (فکری هڅونې دود)<br>**د فعاليت ځوابونه:**<br>**لومړی متن (۱۰ دقيقې)**<br>هغه متن چې له فعاليت څخه وروسته راغلی دی، زده‌کوونکو ته ولولئ او توضيح يې کړئ ( د وينا دود، توضيحي طريقه).<br>**دويم فعاليت (۱۰ دقيقې)**<br>فعاليت بايد د فکري هڅونې په دود اجرأ شي.<br>**د دويم فعاليت ځواب:**<br>۱- په نوي اساسي قانون کې دحقوقو او بشري ارزښتونو په ساتنه زيات ټينګار شوی |
| | دی. چې ځينې برخې يې د لوست په متن کې راغلي دي.<br>همدارنګه په ۲۲،۲۳،۲۴، مادو کې. |

| | |
|---|---|
| | **دوه ویشتمه ماده**<br>د افغانستان د اتباعو تر منځه هر ډول تبعیض او امتیازمنع دی. د افغانستان اتباع ښځې دي او که نارینه د قانون په وړاندې مساوي حقوق او وجایب لري.<br>**درویشتمه ماده**<br>ژوند الهي بخښنه او دانسان طبیعي حق دی. هېڅوک له قانوني مجوزه پرته لـه دې حقه بې برخې کیدای نشي.<br>**ځلرویشتمه ماده**<br>آزادي د انسان طبیعی حق دی. دا حق د نورو له آزادۍ او له عامه مصالحو پرته چې د قانون له لیارې تنظیمیږي جواز نه لري.<br>د انسان آزادي او کرامت له تېري خوندي دی. دولت د انسان د آزادۍ او کرامت په ساتنه او درناوي مکلف دی.<br>۲- د افغانستان د اسلامي جمهوریت دولت د بشر د حقوقود لازیاتې ساتنې او څارنې لپاره، د افغانستان د بشر د حقوقو د خپلواک کمیسیون په جوړولو اقدام وکړ.<br>**دویم متن** (۱۰ **دقیقې**)<br>دویم متن تشریح شوی دی او د لزوم په صورت کې دې له مخې ولوستل شي.<br>**کورنۍ دنده**:<br>زده‌کوونکو ته دې دنده ورکړل شي چې د لوست وروستۍ برخه د راتلونکي درسي ساعت لپاره سرته ورسوي. |
| **دویمه برخه**<br>(**په یوه درسي ساعت کې دې تدریس شي**) | **د لوست پیل** (**۵ دقیقې**)<br>سلام اچول او د زده‌کوونکو سره د عاطفي اړیکو نیول او د حاضري اخیستل.<br>**وروستۍ برخه**:<br>**د لوست تکرار** (۱۰ **دقیقې**)<br>د لوست متن او موخو ته په پاملرنې سره، هغه لنډیزونه چې زده‌کوونکو لیکلي دي، وڅېړئ.<br>**پوښتنې**(۱۰ **دقیقې**)<br>**د پوښتنو ځوابونه**:<br>۱- د۱۳۵۵ کال په اساسي قانون کې. ۲- په هېواد کې د دوولسیزو جګړو له امله د بشر له حقوقو نه سرغړونې زیاتوالې موندلی دی. په دې موده کې زموږ زیات شمېر هېوادوال مړه او زخمیان شول. کوچنیان او په خاصه توګه نجونې له تحصیل نه محروم شول او ډېرې کورنۍ بهرنیو هېوادونو ته کډه شوې. |

۳- پدی کنفرانس کې د افغانستان د مختلفو ډلو استازو د موقتې ادارې تشکیل د افغانستان د ټولو خلکو او قشرونو په عادلانه ګډون سره د افغانستان د بحران د حل د معقولې لارې په توګه ومانه.

۴- له اساسي قانون سره سم د افغانستان د بشر د حقوقو خپلواک کمیسون دنده لري چې له بشري حقوقو نه د افرادو سرغړونې واوري او هغه قانوني مراجعوته راجع کړي او دحقوقو په دفاع کې له هغوی سره مرسته وکړي.

۵- د افغانستان د بشر د حقوقو خپلواک کمیسون د خلکو دپوهې د کچې د لوړېدو او د بشر د حقوقو د ملاترپه مقصد له وزارتونو او نورو ټولو دولتي سازمانونو او مدني ټولنو او رسنیو سره نږدې همکاري لري.

**وروستی فعالیت (۱۰ دقیقې)**

زده‌کوونکي دې خپل ځوابونه په ټولګي کې ولولي.

## د څېرکي لنډیز(۱۰ دقیقې)

د څېرکي لنډیز زده‌کوونکو ته ولولئ.

## د ښوونکي لپاره اضافي معلومات

د افغانستان د بشر د حقوقو خپلواک کمیسون د بن د غونډې د پرېکړه لیک په بنسټ په ۱۳۸۱/۳/۱۲ هـ .ش (۲ جون ۲۰۰۲ ) ع کال په هېواد کې د بشرد حقوقو دملاتړ او ښه والي په مقصد منځ ته راغې او د موقتې ادارې د رئیس په فرمان يې عملاً په کار پیل وکړ. په نوي اساسي قانون کې د افغانستان د بشر دحقوقو د یو دايمي خپلواک کمیسیون وړاندوینه شوي ده.

د افغانستان د بشر دحقوقو خپلواک کمیسیون یو مرکزي دفتر لري چې په کابل کې موقعیت لري او اته سیمه ییزدفترونه لري. چې په هرات،کندهار، ګردیز، ننګرهار، بدخشان، بامیان مزارشریف او میمنه کې په فعالیت بوخت دي. د دې دفترونو دجوړېدو موخه په ولایاتو کې د بشر پر حقوقو د څارونکو ډلو ایجاد ول دي. سره له دې چې د دې کمیسیون په وینا دا دفترونه اجرایي صلاحیتونه نه لري مګر د هغوی شتون په دې سیمو کې تر یوه حده د ځینو کسانو د خپل سری د مخنیوي لامل ګرځي.

د افغانستان د بشر د حقوقو خپلواک کمیسیون یو ولس دايمي کمیشنرۍ لري چې پنځه تنه يې ښځې او شپږ تنه يې نارینه دي. څرنګه چې وویل شول، دا کمیسیون د بن د پریکړې پر بنسټ د بشر د حقوقو نه د سرغړونې د مخنیوي په مقصد چې په درې وروستیو لسیزو کې منځ ته راغلي دي، جوړ شوی دی.

د بشر د حقوقو ګډوډ حالت، د هېواد نامناسبه امنیتي او حقوقي وضعیت د بشر د حقوقو د خپلواک کمیسیون جوړېدل ایجابوي. له دې کبله د یوې تل پاتې سولې او د بشر له حقوقو د سرغړونې نه د مخنیوي په مقصد د بشر د حقوقو د کمیسیون جوړېدل د یو ټولنیز بنسټ په توګه لازم او ضروري وه. له همدې امله وه چې د بشر دحقوقو خپواک کمیسیون د بشر په حقوقو د څارنې او د بشر له حقوقونه د سرغړونې دمخنیوي په مقصد منځ ته راغلی دی. کمیسیون وروسته له جوړېدونه هڅه وکړه چې د ډېرو بې عدالتیو او ظلمونو مخه ونیسي او له هغو سره چې حقوق يې له ډېرو کلونو راهیسې تر پښو لاندې شوي و، مرسته وکړي